## اول لامل:

## د الله عز وجل قانون

د الله عزوجل یو قانون دی چې هغی ته مونږ د دنیا فطری قانون هم ویلی شو او هغه دا چې :

دنړی په تاریخ کې داسې هیڅ وخت نه دی شوی چې د خپل وخت د ټولو نه قوی او ستر سلطنت ( امپراطوری) د تل لپاره په نړۍ حکومت کړی وی او د زوال سره نه وی مخامخ شوی .

تر پرونه چې کومو سلطنتونو د دنیا په اوبو او وچو حکومتونه کړی دی که څه هم دغه حکومتونه سوونه کاله د نړی پر مخ شتون درلود خو نن هغوی د خپلو ظلمونو او بد اخلاقیو له امله د تاریخ په پاڼو کې یواځې د لوستلو لپاره پاتې شوی دی د مثال په توګه: عادیان، ثمودیان، فرعونیان او یا هم هغه سلطنتونه چې د هغوی اثار لا تر اوسه نه دی معلوم چې دا ټول د دغه لویو سلطنتونو د زوال ښکاره نموني دي.

که مونږ د ایران، روم او یونان هغه سترو سلطنتونو تاریخ ته ور وګرځو نو دا به راته جوته شی چې نن هغوی په جغرافیائي لحاظ دمره واړه شوی دی چې د ریل ګاډي په ذریع مونږ د څو ساعتونو په محدود وخت کې هغه په کامله توګه لیدلی شو، نن چې د ایران ، روم او یونان کوم حال دی هم دغه حال د پرونی مسلمانو خلافتونو بنی امیة. بني عباس او عثمانیانو هم دی.

که تیرو څو لسیزو ته ور وګرځو نو مونږ به یو بل ستر او لوی سلطنت و وینو چې د هغی په باره کې ویل کېدل:

لمر په هغه سلطنت کې نه وه ډوب شوی او نه به ډوب شی (که چېرته به د بریطانیا د واک لاندی په کوم هیواد کې لمر په غورځیدو وه نو په بل اشغال شوی هیواد کې به لمر په راختلو وه ) خو الله عزوجل هغوی ته ډیر مهلت ورکړ او بیا یی هغوی داسې نیست او نابود کړل چې نن ورځ په ډیره مشکله په بریطانیا کې لمر را خیژي ، هغه بریطانیا چې پرون یو ستر سلطنت وه نن د یوه بل هیواد ( امریکا) پیروی کوی او د هغوی غیر مستقیم غلام دی .

د شوروی اتحاد قیصه خو پرونی ده ، د اویا کالو په ډیره لږه موده کې شوروي په ډیره تیزی سره نړی ته ځان ور وښوده او د نړی د ستر ځواک څخه و شمیرل شو ، خو نن ورځ همغه شوروی داسې نابوده او ویجاړه شوی ده چې د نړی په نقشه نن ورځ د شوروی اتحاد په نوم هیڅ امپراطوری شتون نلری .

د پورته ذکر شوی هیوادونو ( قومونو) زوال مو ځکه ذکر کړ چې تر څو په دی پوهه شو چې ددنیادا اصول دی چې هیڅ وخت یو قوم او یا هم یو هیواد په دنیا د تل لپاره حکومت نشی کولی .

اصلا قومونه (هیوادونه) د خپل زوال او ورکېدلو لپاره په خپل لاس لاری او اسباب جوړوی، خکه کله چې دوی د ظلم، بی انصافي، بی رحمی، غلا، شرابو، زنا، او نورو بد اخلاقیو څخه کار واخلی نو بیا دا کارونه د دوی د زوال سبب گرځي چې بیا دوی په یوه ټاکلي وخت د تاریخ د پاڼو یوه برخه گرځي .

## ۲ لامل : د امریکا په ضد نړیوال نفرت :

نن ورځ چې نړی د امریکا له ویری ریږدي او په نړی کې داسې ملت (هیواد) نشته (بغیر د هغه محدود کسانو نه چې د نړی په هر ځایی کې د امریکا په ضد جهاد کوی) چې هغوی دی امریکا ته لاس په نامه نه وی ولاړ ، امریکا غواړی چې دنیا خپله غلامه کړی او له دی امله په دنیا کې داسې یو هیواد شتون نلری خاصتا اسلامي هیوادونه چې په هغی کې امریکا مداخلت نه وی کړی او

یا یی نه کوی، د امریکا د همدغه مداخلت او لاس وهني له امله په ټوله نړی کې هر قوم نن د امریکا نه بیزاره دی او په زړه کې ورسره دښمنی لری او دا دعا کوی چې کاش امریکا زوال ومومی، د دی ښه مثال لس کاله مخکې د یمن وزیر اعظم عبدالقادر جمال دی ، هغه په یوه خبری کنفرانس کي ویلی وه :
الله عز وجل دی وکړی چې امریکا ډیر زر نیست او نابوده شی .
( ۲۰۰۴ / ۱ / ۱۰ ورځ اکسپریس ، ډان او نوائي وقت ورځپاڼي او عربی تلویزوني خپرونی ).
نن ورځ هر مفکر او څیړونکي په دی متفق دی چې:
که چېرته د نړی د نقشی نه د امریکا نقشه ورکه شی نو په ټوله نړی کې به خوشحالی او ارامي راشی ځکه نن ورځ امریکا د نړیوال ترورېزم جاله ده او امریکا د هر هغه هیواد سره کومک کوی او یا هم د هغوی نه دفاع کوی چې هغه د ترورېزم لپاره کار کوی او یا ترورېسته وی چې ښه مثال یی د اسرائیلو دی .
هر هغه هیواد چې نړی ته په خپله د دی دعوت ورکوی چې د هغه نه بیزاره شی نو دا بیا ښکاره خبره ده چې هغه هیواد کله هم په خپل حال نشی پاتې کېدلی، او یا د زوال سره مخ نشی .
یوه غربي شاعره لیی میریکل وائي :
هغه ورځ لیری نه ده چې امریکا به په نړیواله کچه د خپلو ظلمونو او د مظلومانو د آه له امله نیست او نابوده شی .
دبینټ بوکس کتاب ٦٥ مخ ، کولمبیا ، امریکا ۲۰۰۰ کال .
یوی بلی مشهوری لیکوالې سټیون سالایټه په خپل کتاب انتهی عرب رایسم کې لیکلی :
په امریکا کې د عربانو په ضد تعصب خپل عوج ته رسیدلی دی که چېرته د امریکا دغه تعصب همداسې مخ پر وړاندی روان وی نو هغه ورځ لری نه ده

چې امریکا پکې نابوده نشی.
د ستېیون سالایتیا د انتهي عرب رابسیم کتاب ۷۰ مخ.
مشهور انگلیسی اخبار ډان په خپلی یوی گڼې کې داسې یو خبر چاپ کړی وه:
د ایکواډور رئیس جمهور رافیل د امریکا د سفارت یو لوړ چارواکې په دی جرم د خپل هیواد څخه و ویسته چې هغه ایکواډور د امریکا مستعمره گڼلی وه ، د ایکواډور رئیس جمهور خپلو وطنوالو ته په یوه تلویزونی پیغام کې ویلی ول:
د امریکا دغه سفارتي چارواکي د امریکا کومک په دی شرط پوری تړلی وه چې د تروریزم په ضد چې په ایکواډور کې کومی هلی ځلی روانی دی د هغی مشر دی د واشنگټن په خوښه مقرر شی ، د دی له امله ما دغه چارواکي ته د ۴۸ ساعتونو وخت ورکړی چې خپل سامان ټول او ایکواډور پریدی .
د ډان اخبار ١٦ مخ ١٠٠٩ / ٢/٠٨ .
د امریکا د بدمعاشی او سر څوری معامله دمره سخته او ښکاره ده چې په خپله د امریکا د پنټاگون په یوه راپور کې داسې راغلی چې:
امریکا دی د خپلو گټو په خاطر هره هغه لار استعمال کړی چې کومه یی په وس پوره وی ، او ددی پروا دی نه گوی چې څرنگه او کومه نتیجه ولری.
د مشهور لیکوال نوم چومنسکې کتاب روگ ستیټ ۴۵ پاڼه.
همدغه پورتنی لیکوال په خپل یاد شوي کتاب کې لیکلی:
امریکا د نړی یواځنی هیواد دی چې ځان د قانون نه لوړ او برتره گڼي او د همدغه سوچ او روئي له امله امریکا په توله نړی کې مشکلات پیدا کوي ، د ورلډ أرډر د اصولو او قوانینو ماتول د امریکا لپاره هیڅ اهمیت نه لری ځکه د یوه ستر ځواک لپاره بین المللی قوانین هیڅ هم نه دی.
همدغه لیکوال نوم چومنسکې د مشهور نړیوال مفکر سیموئیل هنگتن په حواله داسې لیکلی:
د امریکا څخه اوس د نړی تر ټولو لوی بدمعاش جوړ شوی دی ، نن ورځ

امریکا په نړی کې اتیا فیصده بندیزونه د خپلو شخصی ګټو لپاره لګوی.
د نوم چومسکې کتاب روګ سټیټ ۵۳ مخ .
نن چې د نړی په ګوټ، ګوټ کې د امریکابانو سره کوم نا وړه چلندونه کیږی د هغو ټولو مثالونو نه دا په ښه توګه روښانه کیږی چې په نړیواله توګه د امریکا سره څومره نفرت کیږی او روان دی .
د چاپان اوکي ناوا په ولایت کې چې څه وخت د امریکا هلته ټاکلي جنرال قونصل د هغه ځاي یوه هوټل ته د خپلو څو ملګرو سره د چاي څکلو لپاره لاړ نو په هوټل کې ناست دری ځلویښت کلن جاپانی د خپل چاي پیاله په ډیر قهر سره د امریکا په جنرال قونصل باندی واړوله او داسې یی ورته و ویل:
تاسو خپل فوځونه د جاپان څخه وباسی .
د ۲۰۰۹ / ۴ /۹ د ډان انګلیسی ورځپاڼه.
داسې هم نه ده چې د نورو ملکونو وګړي د ا مریکا څخه نفرت نه کوی بلکې په خپله د امریکا اولس هم په اوسنی وخت کې د امریکا د اوسنی حکومت څخه ډیر نفرت لری، مشهوره لیکواله سټیون سټالیټیا په خپل کتاب انتی عرب رایسم کې لیکلی:
امریکا چې د پانامه په ښار په نولس سوه نه اتیا کال کې کومیرغل وکړ ایا هغه ظلم ، وحشت او تروریزم نه وه ، امریکا چي نولس سوه نوی کې په عراق کوم بندیزونه ولګول او د هغي له امله پنځه لکه عراقی ماشومان له لوږي مړه شول ایا هغه ظلم ،بربریت او نړیواله بدمعاشی نه وه.
دسټیونسالیټیا د کتاب Anti-ArabRacism In The USA ۵۴ مخ.
کله چې امریکا په نولس سوه پنځه اویا کې په ویتنام یواځې د دی لپاره یرغل وکړ تر څو ویتنام خپل تابع کړی ، د امریکا دغه جنګ څو کاله دوام وکړ چې د هغی له امله یی دیرش لکو ویتنامیان و وژل ، د دوه زرم میلادیز کال د نومبر په میاشت کې د هغه وخت ریس جمهور بل کلنتن د ویتنام د جنګ نه پنځه

ویشت کاله وروسته د هغه وژل شویو ویتنامیانو قبرونو ته ورغۍ او خپل سر یی د هغوی د قبرونو په مخکې کې ټیټ کړ چې د کلنټن په دغه کار سره د امریکا حکومت په رسمي توګه د هغوی قتل عام ومانه ، ایا دا د وحشي امریکا بربریت او تروریزم نه وه.

د امریکا اوسنی جمهور رئیس بارک اوباما د جرمني د چانسلری انجیلا میرکل سره په یوه مطبوعاتی کنفرانس کې د دی اعتراف وکړ چې : امریکا د اروپا په بین المللی کردار لوبولو کې هیڅ وخت خوښي نه ده څرګنده ګړی او کله ئي هم زړه دیته نه دی ښه کړی چې د اروپائی هیوادونو سره په ګډه کار و کړی ، بلکې همیشه یی د کبر او غرور څخه کار اخیستی دی ، بارک اوباما دا ومنله چې نن په اروپا کې د امریکا په ضد ډیره زیاته کرکه شتون لري.

د ډان اخبار ۲۰۰۹ کال د اپریل میاشت څلورم تاریخ .

د یوه خبر له مخی د ایران صدر اعظم احمدی نژاد په بوش باندی داسې تور لګولي وه چې :

بش د یوه داسې انسان په ژبه خبری کوی چې هغه د انسانانو د وینو تږی ښکاری .

په امریکا کې چې د مسلمانو عربانو سره کوم ناوړه چلند او تعصب کیږی د هغی اندازه مونږه د هغه راپور نه په ډیره ښه توګه کولی شو چې په نولس سوه یو نوی کې د برسلز په ښار کې د امریکا مخکنی لوی څارنوال ریمزی کلارک په مشری شوی وه ، دغه راپور چې په دی کې یو امریکایی نژاده فلسطینی هم وه داسې راغلی ول :

مونږ عربان همیشه د صهیونی امریکا د زور او ظلم ښکار شوی یو ، مونږه په امریکا کې کله هم په ارامه او خوشحالی ژوند نه دی تیر کړی ، زمونږ د ځورولو لپاره امریکایان د هر رنګ طریقو او لارو څخه کار اخلی چې د هغو له جملی څخه یوه هم دا ده چې:

د شپې نا وخته او یا هم سهار وخته امریکایان زمونږ په کورونو چاپې وهي ، هم داسې په میدان هوائي کې هم زمونږه سره ډیر زیاتی کوی او بی ځایه مو تنګوي او کله نا کله خو د دوی پوښتنی او بی ځایه تنګول دمره ډیر وخت واخلی چې انسان د خپل ځانه مایوسه شی ، د الوتکو یوی مشهور شرکت پان ایم أئیر لائن خو داسې یو اعلان خپور کړی وه چې د هغی له مخی د پان ایم دطیارو په هوائي شرکت او په دغه طیارو کې یو عرب هم سفر نشی کولی او اوس خو یی لا یوه نوی لاره پیدا کړی چې زمونږ جوماتونو او دکانونو ته اور ور اچوی .

په عراق کې امریکائي جنګی جرمونږ کتاب د محمد امین ژباړه ۴۵ مخ .

اسرائیل چې د فلسطینیانو سره کوم ظلم او بربریت کوی د هغه په سلګونو ژوندی مثالونه شته او د اسرائیلو دغه کار د ملګرو ملتونو د ډیرو تړونونو څخه ښکاره سر غړونه ده ، څه وخت چې اسرائیلو په لبنان حمله وکړه او په زرهاؤ بی ګناه انسانان ئي مړه کړل او کله چې یی د ګولان غرونه او غزه ونیوله په هغه وخت کې امریکا د نړی تر ټولو لومړني هیواد وه چې هغوی یواځي دا نه چې د اسرائیلو حمایت یی وکړ بلکې د اسرائیلو سره یی مالی او فوځی مرسته هم وکړه.

امریکا په نولس سوه شپږ اتیا کې د لیبیا په دوه ښارونو بن غازی او تریپولی باندی بمباری وکړه چې د ملګری ملتونو د قانون څخه ښکاره سر غړونه وه، امریکا تر ننه افغانستان او عراق اشغال کړی دی، امریکا د معمر القذافي حکومت و غورځاوه او په سوریه کې هم تر ډیره حده ښکېل ده، چې دا د نړیوال تروریزم او بد معاشی ښکاره مثال دی ، امریکا همداسې په غیر مستقمه توګه د اسلامي نړی او نورو هیوادونه د خپل کنترول لاندی رواستی دی، یا خو یی د دغه هیوادونه مشران خپل غلامان کړی دی او یا یی هم داسې نوری طریقی اختیار کړی چې د هغی له امله یی اسلامی هیوادونه د امریکا تر نفوذ

لاندی دی .

په عراقکې د امریکا جنګي جرمونه ، ژباړه : محمد أمین ، ٦٥ مخ .

امریکا په خپله د ملګرو ملتونو د امن تړونونو څخه په سلهاؤ ځله سر غړونه کړی ده ، د امریکا پخوانی رئیس جمهور ډبلیو بوش چې کله په عراق حمله کوله نو داسې یی و ویل:

((مونږه یوائې د صدام حسین په ضد جنګ شروع کړی دی )) خو دغه وحشی په عراق داسې بمونه او وسله وکاروله چې د هغی له امله په لکونو انسانانو خپل ژوند له لاسه ورکړ او په میلیونو نور معیوب شول، حال دا چې د عراق عام وګړو د امریکا سره هیڅ رقم ستونزه او دښمنی نه درلودله.

امریکا چې څه وخت په افغانستان حمله وکړه نو د اسامه بن لادن او ملا محمد عمر پسی راغلی ول خو الله عزوجل شاهد دی چې امریکا په افغانستان کې کوم ظلم او بربریت ترسره  کړی کېدای شی په تاریخ کې ئي ساری ونه موندل شی ، امریکا په افغانستان کې نه هدیره پریښوده نه واده او نه هم د ودونو میلمانه ، امریکا په افغانستان کې نه جومات پریښود او نه هر هغه افغان چې په سر یی لونګي تړلی وه ، امریکا په افغانستان کې داسې وسله وکاروله چې تر اوسه په یوه جنګ کې هم د هغی ساری نه لیدل کېږی ښه مثالونه ئي د انټرنټ په ویبپاڼو کې د هغه نوی زیږیدلو ماشومانو انځورونه او راپورونه دی چې د همدغه وسلی د استعمال د اثر له امله په هغوی د مور په خیټو کې اثر کړی دی.

په اوسنی وخت کې امریکا په یمن کې هم خپله سفارت خانه د نا معلومه وخت لپاره بنده کړی ده ، د امریکا حکومت د سفارت خاني کار کوونکو ته ویلی دی چې تر څو پوری مونږه د سفارت د بیا دکار کولو امر نه وی صادر کړی تر هغی دی سفارت نه خلاصوی.

د امریکا مشهور اخبار واشنګټن تائمز په خپله یوه ګڼه کې داسې لیکلی:

امریکا چې په نړی کې د جمهوریت او مساوات لپاره کومی هلی ځلی کوی هغه نن ورځ په نړیواله کچه خپل حمایت په پر له پسی توګه له لاسه ورکوی.
د واشنګټن ټائمز اخبار ۲۰۰۹ میلادی کال د ۱۲ میاشتی ۱۴ تاریخ .
د واشنګټن ټائمز د دغه پورتني راپور څخه مونږ دوه مطلبه اخیستلی شو:
اول: د امریکا حکومت چې د ظلم او بربریت په وړاندی په نړیواله کچه کومی منډي او ناري وهی دا د هغوی هسی دروغ او نور قومونه تیر ویستل دی.
دویمه دا چې: امریکا چې دجمهوریت کومی دروغجني چغي او هلی ځلی کوی هغه د خپلو ګټو او د نړیوال استعمار لپاره وهي ، امریکا نن ورځ د نړی په هر ځایی کې د هر هغه هیواد د حکومت څخه دفاع کړی چې هغه د امریکا د ګټو لپاره کار کوی.
امریکا که څه هم هسی په خوله د جمهوریت چِغی وهی او دا دعوه کوی چې هغه په ټوله نړی کې دموکراسی غوښتونکې دی خو بیا هم امریکا د هر شاهي ، جابر او ظالم حکومت څخه صرف د دی په خاطر ملاتړ کوی تر څو هغوی د امریکا د مفاداتو لپاره کار وکړی او د نړی په پر هغه هیواد کې یی د حالاتو دخراپولو کوښښ کړی چې هغوی یواځې د امریکا د سیاست سره تضاد ښودلی دی او امریکا تل د دی په لټه کې دی چې هغه هیوادونه دیته مجبوره کړی چې د امریکا په مخ کې په ګونډو شی .
د امریکا مشهور فلسفي او نوماند لیکوال نوم چومنسکي په خپل مشهور کتاب د روګ ستیټ کې لیکلی:
امریکا د نړی تر ټولو لوی بد معاش او فرعوني هیواد دی، هغه لیکلی:
د ویت نام جنګ د شلمي پیړی تر ټولو لوی تروریزم وه او دی ، نوم چومسکې دغه خبری به خپل مشهور او په خپل وخت کې تر ټولو ډیر خرڅ شوی کتاب روګستیټ کې لیکلی دی.
امریکا سره نړیوال نفرت د دي نه ډیر ښه معلومیږی چې نن ورځ د نړی په هر

ځایی کې د امریکا سفارتونه ، قونصلګري او امریکایی وګړي په هیڅ ځایی کې هم نه دی خوندی، داسې به سلهاؤ واقعي شوی دی چې د هغی له امله امریکایان د نړی په هیڅ ځایی هم په ارامه او سکون نشی ګرځیدلی، د دغه او د داسې واقعو څخه اخبارونه، مجلی او د انټرنټ پاڼي ډکې پرتي دی ، همدغه لامل دی چې د امریکا حکومت وخت په وخت خپلو وګړو ته د محتاط اوسیدو لار ښو ونی کوی.

په کراتو داسې هم شوی دی چې د امریکا حکومت د تروریزم د خطر له امله په نورو هیوادونو کې خپلو سفارتونو او قونصلګریو ته د بندیدو او کار نه کولو هدایت کړیدی، چې ښه مثال یی په دوه زرم میلادی کال کې په ترکېه کې د امریکا د دوو قونصلګریو بنده ول دی او ورپسی یی په قطر کې خپل سفارت هم د تروریستی حملو د کېدلو له ویری بند کړ.

د امریکا په ضد چې د نړی په مختلفو خایونو کې خلک څومره نفرت لری د دی ښه اندازه له دی واقعی څخه کېږی چې کله د امریکا په اردو کې مسلمان نفسیاتی ماهر ډاکټر ندال مالک د ټیکساس په فوځي اډه کې په خپلو نورو فوځي ملګرو د ګولیو باران وکړ چې په دغه ډزو کې ندال مالک دیارلس امریکایی سرتیری مړه او یو دیرش نور یی زخمیان کړل .

د نړی ډیرو تلویزونو او اخبارونو دغه خبر خپور کړ ، ډیرو خو لا داسې هم ورسره ویلی ول چې : کله ندال مالک ډزی شروع کړی نو دهغی نه مخکې یی د الله اکبر چغه و وهله ، په یاده دی وی چې ندال مالک د امریکا په فوځ کې یو لوړ رتبه فوځي وه ، د امریکا رئیس جمهور بارک اوباما د ټیکساس په فوځي اډه کې دغه واقعه یوه نه هیریدونکې او خونړی واقعه و بلله.

دیارلس کاله مخکې د پاکستان په بلوچستان ولایت کې نیول شوي ایمل کانسی چې هغه امریکایان وژلی ول او بیا وروسته د پاکستان حکومت امریکا ته وسپاره هغه په امریکایي محکمه کې قاضی ته داسې و ویل:

دغه امریکایان ما وژلی او که په راتلونکې وخت کې کله هم ماته همداسې موقعه په لاس راغله نو بیا به هم امریکایان بی وژلو پرینږدم ، همغه وه چې ایمل کانسی یی بیا په دار و ځړاوه.

دا پورتنی ذکر شوی مثالونه د امریکا سره د نفرت تر ټولو ښه مثالونه دی که څه هم داسې نور په سلهاؤ مثالونه شته خو په دی به بسنه وکړو.

د یوه راپور له مخی د امریکا یو لوړ چارواکي مائیک مولن په امریکا کې د اسلام خوښو اړوند سیاسي پالیسی باندی تنقید کړی دی او هغه ویلی:

د امریکا هر تیر شوی حکومت د نړی نور هیوادونه دیته مجبور کړی چې د امریکا خبر و منی او د هغوی اطاعت وکړی او د امریکا هر حکومت دا هڅه کړی ده چې څنګه او په کومه طریقه کولی شی په نورو حکومتونو خپلی خبری او سیاست ومني ، که چېرته په نورو هیوادونو کې د امریکا په باره کې دا تأثر وی چې امریکا مغروره ، ظالمه او دوکه کونکې ده نو په دغه ملکونو کې به بیا یوه ورځ د امریکا ځواک ختم او ورک شی.

هغه ویلی:

د اسلامي هیوادونو وګړي چې د امریکا سره کومه کرکه لری په هغی مونږ او د امریکا حکومت ښه خبره ده خو د خواشینی ځای دا دی چې د امریکا حکومت د دغه کرکې لپاره د اعتماد وړ کارونه نه دی کړی ، که امریکا غواړی چې اعتماد تر لاسه کړی نو هغه دی د نړی د نورو خلکو خبری هم واوری تر څو د امریکا په ضد چې کوم نفرت زیږیږی د هغه مخه ونیسی.

د امریکا سره د نړیوال نفرت د درلودلو په باره کې د امریکا د یوه لوړ چارواکي دغه خبره ډیر زیات ارزښت لری .

په اروپا کې چې خلک د امریکا سره څومره نفرت لری هغه د اسیا او افریقا څخه کم نه دی. د امریکا سره د اروپا ښکاره نفرت په اروپا کې د امریکا د اقتصاد په ضد د اروپایی اتحادیي جوړیدل او د یورو رامنځ ته کېدل دی ، لږه

موده مخکې روس او چین هم یو تجارتی تړون لاسیک کړی دی چې د هغی له امله به روس او چین دواړه د ډالر پر ځايي په خپلو پیسو (روبل او ین) باندی تجارت کوی د روس باچا په دغه تړون کې ویلی ول چې:

روس غواړی د ډالر حاکمیت را کم کړی، څو کاله وړاندی د مالیزیا پخوانی وزیر اعظم مهاتیر محمد په اسلامي کنفرانس کې هم دغسی یوه غوښتنه د اسلامی ملکونو د مشرانو څخه کړی وه خو متاسفانه چې د هغه خبره همغسی خبره پاتی شوه.

اوس اصلي خبره دا ده چې داسې افسوسناک او دکرکې څخه ډک حال د کوم بل هیواد سره ولی نه کیږی او ولی د نړی به هر ځایی کې خلک د امریکا د حکومت څخه کرکه کوی.

د امریکا مشهور لیکوال او د سیاسی چارو کار پوه مائیکل مور د امریکا رئیس جمهور بارک اوباما ته یو اوږد خط ور لیږلی وه چې هغه په دغه خط کې اوباما ته لیکلی ول:

نن ورځ زمونږ اقتصاد د زوال په لور روان دی او زمونږ نني ځوانه طبقه د چل، فریب او ضد ښکار شوی او قرباني ورکوی، که څه هم ته یو جنګي رئیس جمهور یی او نن ورځ چې زمونږ اقتصاد د زوال په لور دی نو هغه ورځ لری نه ده چې زمونږ د اقتصاد سره به ډیر زر زمونږه تهذیب هم زوال وموميي ، او هغه ورځ را روانه ده چې مونږ به د تاریخ په پاڼو کې د وخت د ګردنو لاندی د الماری په کوم کونج کې پراته یو .

مائیکل مور په خپل دغه خط کې لیکلی:

ته دیته زړه مه خوشحالوه چې افغانستان ته د نورو فوځیانو په لیږلو به ته کامیابه شی او هغه خلک چې ستا ، ستا له قوم او هیواد څخه نفرت کوی ستا د دغه لیږل شوی فوځ له امله به ستا او ستا د هیواد عزت وکړی او یا به هغوی له تا څخه وډار شی ، افغانان به تر هغی ستا او ستا له هیواد څخه نفرت کوی چې

تر کومه امریکا ټوټه ، ټوټه شوی نه وی او تر کومه چې د یو غریب امریکایی د جب څخه اخرنی ډالر نه وی اخیستل شوی او امریکا په اقتصادی او فوځي لحاظ په ګونډو شوی نه وی تر هغی به هغوی د امریکا څخه نفرت کوی.

مهربانی وکړه هغه عام افغانان چې ستا او ستا د وطن لپاره خطر نه دی د هغوی د وژلو او ولچک کولو لپاره نوره اردو مه لیږه او په بلیونونو او ټریلینونو ډالر په دغه جوړه شوي لوبه مه مصرفوه ، د هغي ورځي څخه و ډار شه چې امریکایي ماشومان به په کوڅو کې اوده کېږی او د یوی ډوډي د اخستلو لپاره په قطار کې انتظار ولاړ وی .

www:Michaelmoore.com/words/mikes.letter.

دنړي په هر هیواد او قوم کې د امریکا سره داسې کرکه درلودل د تل لپاره یو سوال دی چې د دغه له امله د امریکا خوندی پآتی کېدل ناشونی خبره ده په را روانو پنځه لس یا شلو کالو کې د امریکا د زوال یو لوی او مهم سبب همدا نړیوال نفرت هم کېدلی شی .

مشهور امریکایی لیکوال جان ټیرمین په خپل کتاب کې لیکلی:

د امریکا متحده ایالات چې د نړی د هغه غریبو هیوادونو سره چې د هغوی سره د امریکا ګټي تړل شوی دی څه ډول او تر کومه حده کرکه لری په هغی د پوهیدلو لپاره دمره بس ده چې امریکا داسې هیوادونو ته خپل فوځونه ورلیږی او بي ځایه او هسی کومک ورسره کوی ، که چېرته یی په کوم هیواد کې ګټه هم وی هغه له خپل نظره غورځوی او په هغه ملک کې ګډ وډی رامنځ ته کوی په لنډو ټکو ویلی شو چې :

امریکا کمزوری او غریب ملکونه د خپلو ګټو د لاسته راوړلو په خاطر لکه د ټاپو او مهرونو استعمالوی.

١۴١ دجان ټرمین کتاب 100 Ways American Is Screwing The World

مخ.

مشهوره عیسوی لیکواله ستېوین سالایتا په خپل کتاب کې لیکلی:

په ماشومتوب کې چې ماته زما مور کوم خدای را ښودلی وه هغه خدای د هندوانو ، مسلمانانو ، یهودانو ، بودایانو ، تورو ، سپینو ، او ټولو مخلوقاتو سره یو رنګ او یو شی محبت او مینه کوله ، مګر نني امریکا زما د مور خدای نه منی نن ورځ چې امریکا د کوم خدای خبره کوی هغه په انتقام او بدل یقین لری ، د نني امریکا خدای د جنګ سره ډیره مینه لری او د امریکا دغه خدای چې دوی وایی : ان ګاډ وی ټرسټ ، د جنګ سره تر دی حده مینه لری چې څه وخت یو یهودی د څو میاشتنی فلسطینی ماشوم په شهیدلو بوخت وی نو په هغه وخت کې بیا هم د دوی خدای دوی سره مینه لری ، د امریکا خدای په هغه حال کې هم د جنګ سره مینه لری چې یوه کمزوری بوډې ښځه د یهودانو په منځ کې راګیره وی او هغوی یی کله څادر کش کاړی او کله کمیس او یا یی هم په سپیو داړی ، ننی امریکا او د دوی په لاس او خوښه جوړ شوی خدای زما سره نفرت لری ځکه زه د خپلی مور د خدای سره مینه لرم ، د امریکا خدای ځکه زما څخه نفرت کوی چې زما په نزد د اسلام او مسلمانانو هماغه رب دی کوم چې د یهودانو ، بودایانو او هندوانو دی ، د امریکایانو جوړ شوی خدای ځکه زما سره نفرت لری چې زه ولی مسلمان یا یو عرب یم .

د ستېون سالایټا کتاب Steven Salaita Anti-Arab Racism In The USA ١٦٦ او ١٦٧ مخونه.

## ۳ لامل: بد اخلاقي:

دیوه قوم په تباهي او زوال کې بد اخلافی هم ډیر مهم رول لری ، په قران کریم او اسلامی تاریخ کې دیری داسې واقعي شته چې د بد اخلاقی له امله ډیر قومونه الله عزوجل نابود کړی دی .

بد اخلاقي داسې یو مرض دی چې د هغې له امله یوه ټولنه ( هیواد) بغیر د کومی بیروني حملی او فشار څخه تباه کېږی ، هر وخت چې د یوه هیواد او قوم په وګړو کې زناء او شهوت ځایی ونیسی نو د هغه قوم بیا هر څه ته شا شی او هر لوی او وړکې مقصد او هدف یی له یاده اوځي او بیا د یوه او بل د عصمت د لوټلو پسی ولګیږی ، جنسی شهوت تل انسانان د زوال په لور روان کړی دی او په امریکا کې خو جنسی شهوت د نړی د هر ځایی پر پرتله ځو واره زیات دی ، همدغه جنسی شهوت دی چې نن ورځ په امریکا کې امریکایان په خپلو خویندو او میندو هم جنسی تیری کوی او داسې په زرهاؤ خبرونه او واقعات د امریکا په تلویزنونو او اخبارونو کې وار په وار راغلي دی.

په امریکا کې  د نړی د هر ځایی څخه ډیر جنسی تیری کېږی او د همدی له امله ډیر امریکایی لیکوالان او خیریه ټولني دیته مجبوره شوی چې په دغه اړه ځانته څیړنی وکړی او کتابونه چاپ کړی .

داسې ډیر راپورونه، خبرونه، مقالی او کتابونه شته دی چې په امریکا کې هغه ماشومان چې د هغوی عمر د پنځه لسو کالو څخه کم وی د هغوی سره په زور زناء او یا هم لواطت کېږی، حتی بعضی لیکوالان او څیړونکې خو تر دی حده وایی چې کېدای شی په امریکا کې ډیر کم داسې ماشومان  شتون ولری چې د هغوی سره په زوره زناء او یا لواطت نه وی شوی .

مشهور سفارت کار مراد هوفمین چې په وروسته وختونو کې بیا مسلمان شو هغه د پاکستان د کراچي په ښار کې د شیراټن هوټل په یوه کنفرانس کې ویلی ول چې:

نن ورځ په امریکا کې یو میړه هم دا په ډاډ نشی ویلی چې د هغه میرمن دی د کوم بل سړی سره جنسی اړیکې ونه لری او نه هم کومه امریکایی ښځه دا خبره په ډاډ کولی شی چې د هغه میړه دی له کومی بلی ښځي سره جنسی اړیکې ونلری.

مراد هوفمین په خپلو خبرو کې دا هم ویلی ول چې:

په امریکا کې هر کال په لکونو داسې ماشومان پیدا کېږی چې د هغوی پلرونه نه وی معلوم ، په امریکا کې جنسی شهوت تر دی حده زیات شوی دی چې د کلیسا پادریان هم په کلیسا کې د کارکونکو ښځو سره د جنسی اړیکو په درلودلو تورن شوی دی .

په شیراټن هوټل کې د مراد هوفمین وینا د ۲۰۰۰ کال ۲ میاشت ۲۷ تاریخ . د دی ښه مثال د مشهور پادری دی چې څه موده واندی د ماشومانو سره د لواطت په تور تورن شو .

په امریکا کې د ښځو او سړیو ترمنځ د جنسی اړیکو د نیولو تر څنګ لواطت هم خپل عوج ته رسیدلی دی ، نن ورځ په امریکا کې سړی د سړیو سره او ښځی د ښځو سره زناء کوی او په امریکا او غربي ټولنه کې ورته په ډیر فخر (لیسبین او ګېې ) وائي او کله چې دوی د یو بل سره پیژندګلو کوی نو په ډیر عجیب انداز او فخر سره یو بل ته دغه نومونه اخلی .

له همدی ځایه په امریکا کې د اخلاقو په زوال کې یواځې جنسی اړیکې او فحاشی مهم علتونه نه دی بلکې په حکومتی سطحه هغه دروغ هم شامل دی چې د هغې له امله امریکا په افغانستان او عراق حمله وکړه او په دغه دواړو حکومتونو یې دروغ وتپل، د عراق په حملی یوه لسیزه وا وښته خو تر اوسه د امریکا حکومت هغه دروغجن او تپل شوی الزامونه چې په صدام حسین او د هغه په حکومت یی لګولی ول ثابت نه کړل، د افغانستان په اشغال هم یو نیمه لسیزه تیره شوه خو نه دوی القاعده ختمه کړه او نه هم طالبان بلکې امریکا په افغانستان کې ناکامه شوه او اوس د خپلی ناکامی د پټولو لپاره بهانی جوړوی، اصلا امریکا د هیوادونو په اشغال او د هغی د لاندی کلو په نشه کې د افغانستان، عراق او نورو ملکونو د بی ګناه انسانانو جسدونه په وینو کې خړوب کړل .

امریکا همدا دروغ د نهم ستمبر لپاره هم وکارول او دیته یی د بین المللی تروریزم نوم ورکړ او په اسلام یی حمله وکړه ، حال دا چې تر اوسه امریکا د نهم ستمبر په واقعه کې د القاعدی د لاس لرلو داسې مستند او قوی دلیل نړی ته نه دی ښودلی، حتی دمره یی هم ونه کړل چې د دغه خطرناکه حملی کولو لپاره کومه څیړونکې ډله وټاکې.

بد اخلاقی او یا هم اخلاقی زوال یواځی دیته نه ویل کېږی چې جنسی اړیکې او فحاشی ترینه مراد وی بلکه بد اخلاقی، دروغ، بهتان، ظلم، بد معاشی او خراپی معاملی ته هم ویل کېږی ، حتی چې همدغه دروغو، بی رحمی، ظلم، او بدی معاملی ته د اخلاقو مرگ هم ویل شوی دی ، په همدغه بداخلاقی نن ورځ امریکا او امریکایان د نړی تر هر ځایه ډیر اخته دی او ساری یی نه موندل کېږی.

د امریکا د صحت د وزارت په یوه راپور کې راغلی چې : په امریکا کې کم عمره محصلین چې د هغوی عمر د اتلسو څخه کم وی شراب په پریمانه اندازه څکې حال دا چې د امریکا په قانون کې د دغه عمر لرونکي شراب نشی څکلی او د دغه محصلینو د شرابو د څکلو له امله هر کال په امریکا کې څوارلس سوه محصلین مړه کېږی .

د امریکا نوموړی سائنسدان باک گولډمین وایي:

په بین المللي تجارتي مرکز کې چې څومره خلک مړه شوي دي نو د هغی نه څو چنده زیات امریکایی محصلین هر کال د شرابو د څکلو له امله مړه کېږی او هر کال پنځه لکه نور د شرابو د څکلو له امله د مختلفو مرضونو ښکار کېږی .

په ننی امریکا کې ځان وژنه یوه عامه خبر ده او د هلکانو په نسبت انجوني ډیره ځان وژنه کوی او دغه ځان وژنه ورځ په ورځ تر خطرناکه حده زیاتیږی .

د یوه راپور له مخی د ځان وژنی لوی علتونه خفگان ، ذهني فشار، د مور او پلار بی غوری او اولاد ته مینه نه ورکول ، په ټولنه کې د امن کمبود او ډیره او

بی ځایه ازادی ښودل شوی ده .

د امریکا خلک د رحم او بردباری نه دمره لیری دی چې کله خو په تعلیمی مرکزونو ، کورونو، بازارونو او یا هم په عام ځایونو کې د یوه ذهنی فشار ښکار هلک او یا هم انجلي ډزی کوی او د دغسی واقعاتو نه د امریکا اخبارونه او مجلی دکې دی .

ښه مثال یی په دوه زره نهم میلادیز کال کې د اپریل په دریمه د نیویارک په ښارکې د امیګریشن سنټر هغه واقعه ده چې یو کس دغه نوموړی ودانی ته راغی او هلته یی ناڅاپه ډزی شروع کړی چې له امله یی دیارلس کسان مړه او یو څلویښت نور یی اختطاف کړی ول چې په اخره یی بیا ځپل ځان و ویشته . نیویارک ټایمز ۲۰۰۹ د اپریل میاشت څلورم تاریخ .

په همدی کال د فلوریډا په ښار کې په یوی حکومتی ودانۍ یو ځو کسانو ډزی وکړی چې د هغی له امله دولس کسان مړه او شپږ نور ټپیان شول ، چې د دغه پورتنی او داسې نورو په سلهاؤ واقعی په امریکا کې د ذهنی خراپوالی او د هغو د بدو اخلاقو او د مور او پلار د مینی نه د محرومیو نمائنده ګي کوی .

بل خوا د امریکا په فوځ کې جنسی تیري خپل عوج ته رسدلی دی هغه ښځینه فوځیانی چې د نارینه لوړو چار واکو د لاس لاندی کار کوی په هغوی جنسی تیری کول نن ورځ یوه عامه او د هر امریکایی ورځپاڼي سر لیک دی ، په امریکایی فوځ کې د ښځینه فوځیانو د شاملیدو له امله د امریکائي فوځ په اخلاقو او کردار ډیر منفی اثر کړی دی.

نن نارینه امریکایی فو ځیانو ته ښځینه فوځیانی د ساعت تیری نه بغیر بل هیڅ شی هم نه ښکاری، په ویتنام ، عربی خلیج، عراق، افغانستان او نړی په نورو ځایونو کې چېرته چې امریکایی اډي شتون لری هلته امریکایی فوځیان په خپلو ښځینه امریکایی فوځیانو باندی چې کوم جنسی تیری کیږی هغه نن ورځ عام دی ، اوس خو د جنسی تیریو خبره تر دی ځایه را رسیدلی ده چې هغه

امریکایی ښځینه فوځیانی چې د هغوی سره جنسی تیر شوی د هغوی د مرکو ، ویډیوګانو او راپورونو نه ډک مستند کتابونه او پروګورامونه هم جوړ شوی چې د دی ډیر کتابونه چاپ شوی هم دی او په ډیره اساني سره په بازار کې تر لاسه کیږی .

څه وخت چې په یوه ټولنه کې جنسی اړیکې او فحاشی تر دی حده را ورسیږی چې هلته بیا په سلهاؤ او زرهاؤ داسې ماشومان پیدا شی چې د هغوی پلار نه وی معلوم او څه وخت چې دغه ماشومان را لوی شی نو دا ټول بیا په جرمونو ، ذهني مرضونو، ضد ، قتل او غلا کې خپل وختونه تیروی ، او همدا خلک د خپلی ټولنی په بربادولو کې تر ټولو مهم رول لوبوی .

امریکا چې څه وخت په افغانستان او عراق حمکله وکړه نو د امریکایی فوځ اکثره غړی همدغه حرامیان ول او اوس د هغوی اکثریت په داسې یوه مرض اخته دی چې د امریکا حکومت نه یی لاره ورکه کړی ده ، داسې ډیر را پورونه شته دی چې هغه فوځیان چې د افغانستان او عراق په جنګونو کې یی برخه اخیستی وه د هغوی اکثریت په ذهنی مرضونو اخته دی او ډیرو نورو خو امریکا ته په بیرته ورتګ هلته داسې کارونه کړی دی چې دهغی له امله اوس هغوی د امریکا حکومت نظر بند ساتلی دی او یا هم په روغتونو کې تداوی په خاطر بستر دی .

کله چې دغه بی پلاره ماشومان د امریکا په کوڅو کې په غلا او نورو مختلفو واقعاتو کې ښکېل وی او د هغوی د دغه شر نه د امریکا په یوه کوڅه کې هم امن او کلاری نه وی نو دا لری نه ده چې په را روانو څو کلونو کې به په ټوله امریکا کې امن ورک شی چې اصلی لامل به یی همدغه بی پلاره ماشومان وی.

کله چې د یوه هیواد د پادریانو نه نیولی تر حکومتی چارواکو پوری ټول په زناء او جنسی اړیکو کې ښکېل وی (چې د امریکا تاریخ او نړیوال مطبوعات د دغه واقعاتو څخه ډک پروت دی) او امریکائي ځوانی او وړی انجوني په ډیره ازادی

د سرکونو پر غاړه د دوه سوه ډالرو نه تر ینځه سوه ډالرو پوری خپل ځانونه په رضاء او خوښه د بل هوس ته سپاری نو بیا هغه ورځي لیری نه دی چې الله عزوجل پری ځمکه را چپه نکړی ، ښه مثالونه یی تیر قومونه دی .

په امریکایی ټولنه کې د لوڅو انجونو او هلکانو د کلبونو د جوړیدلو له امله د نړی په تاریخ کې دبدکاری او فحاشی لمړی مقام گټلی دی ، نن ورځ چې په امریکا کې کوم ډول بدکاری ، زناء او فحاشی کیږی د هغی له یادولو څخه قلم هم شرمیږی .

څه وخت چې په یوه قوم کې بدکاری او فحاشی خپل عوج ته ورسیږی الله عزوجل بیا هغه قوم ته نور مهلت نه ورکوی ، نو له دی امله هغه ورځ لیری نه ده چې امریکا دی د الله عزوجل په عذاب گرفتاره نشی .

د دغه په باره کې د امریکا او په نړیواله کچه مشهور او پیژندل شوی امریکایی پادری دیوډ ویلکر هم د دی اعتراف کړی دی او هغه ویلی :

امریکا به د الله عزوجل له خوا ډیر زر تباه شی ځکه نن امریکا په گناهونو او فحاشی کې داسې را گیره شوی ده چې دهغی له امله به د الله عزوجل د عذاب نه به هیڅ وخت خلاصه نشی.

امریکا چې په نړیواله سطحه په بد اخلاقی او فحاشی کې لمړی مقام لری ، هلته جنسی اړیکې نیول یوه عامه خبره او شخصی ازادی گڼل کیږی د همدی ازادی له امله د امریکا د روغتیا وزارت وخت په وخت داسې اعلانونه خپروی تر څو خلک د هغی له امله د ایدز د آفت څخه ځانوونه وساتي .

د امریکا د روغتیا وزارت په خپل یوه نوی راپور کې چې یواځي یی د واشنگټن په ښار کې سروی کړی وه او دغه را پور د هغوی په ویبپاڼه کې هم شته دی داسې لیکلی:

په واشنگټن کې د ایدز مرض یو ساری شکل غوره کړی دی چې د سرطان د مرض په مقابل کې څو چنده زیات دی، همدا اوس په واشنگټن کې شپږ

فیصده خلک د ایډز ښکار دی او دا په داسې حال کې چې ډیر نور لا په دی نه دی خبر چې هغوی ایډز دی (هغوی معائنی نه دی کړی او یا کوم روغتون ته نه دی تلی) ، همدغه راپور کې راغلی چې :

د ایډز په دغه ښکار شوی کسانو کې د هغو خلکو فیصدی چې د هغوی عمرونه د ځلویښتو څخه تر پنځو کلونو پوری دی دوه اعشاریه اوه ده او نوره پاتی فیصدی یی د ځوانو انجونو او هلکانو ده چې په دوی کې هغه ماشومان هم شته چې عمرونه یی د دولسو کالو څخه کم دی، دغه را پور لیکلی:

په واشنګټن ښار کې د ایډز د خپریدلو دوه مهم لامله دی:

اول: په سړیو کې لواطت.

دویم: د یوه ښځی له څو سړیو او د یوه سړی له څو ښځو سره جنسی اړیکې نیول.

د امریکا د روغتیا د وزارت ویبپاڼه ۲۰۰۹ ، ۳ ، ۲۰

د فارن افئیر په مجله کې د سیموئیل هنګټن یوه لیکنه خپره شوی وه چې هغه په دغه لیکنه کې داسې لیکلی ول:

امریکا هره ورځ د نړی تر ټولو بدمعاش او جابر هیواد جوړیدونکی دی ، امریکا داسې فکر کوی چې هغه د ټولو بین المللی قوانینو او اصولو څخه مستثنی ده ځکه امریکا د سوړ جنګ نه وروسته ځان د نړی واکدار ګڼی ، که څه هم امریکا په خپله او یا هم نور ملکونه دا فکر کوی چې هغه د نړی تر ټولو ستر طاقت دی خو حقیقت دا دی چې امریکا په نړی کې هره ورځ یو نوی مشکل را پیدا کوی ، اصلا امریکا دوه مخی سیاست کوی.

امریکا د ملګری ملتونو ټولی مالی ادرای د خپل کنترول لاندی راوستی دی د سوړ جنګ نه وروسته امریکا د ټولنی د ترقي پر ځایی د فوځیانو په مصارفو د خپل حد نه څو چنده زیاتی پیسی مصرف کړی او لا یی مصرفوی حال دا چې د ملګری ملتونو د انسانی حقوقو د قانون په ۲۵ ماده کې داسې راغلی :

هر هیواد په دی مجبور دی چې د صحت او د خلکو د ښه ژوند لپاره جدی هلی ځلی وکړی او له دی سره دی هر حکومت دا کوښښ وکړی او د دی حق لری چې د غربت نه ازاد ژوند ته لاره برابره کړی .

خو د امریکا او اروپائی ملکونو په نظر کې دغه رقم انسانی حقوق هیڅ اهمیت نلری ، امریکایی فوځ په یوه افریقایی ملک راونډا کې د څو میاشتو په ډیره لږه موده کې د هغه ملک پنځه لکه خلک وژلی دی .

د وال سټریټ د یوه راپور له مخی امریکا په جنوبی ویتنام کې داسې کېمیایی وسله استعمال کړی وه چې د هغی له امله د ویتنام پنځه لکه ماشومان د پیدائښت په وخت متاثره شوی وه ، امریکا یواځې په ویتنام او راونډا کې دغه ظلمونه نه دی کړی بلکې د نړی په مختلفو ځایونو او وختونو کې یی خپل زور په غریبو او کمزورو خلکو ازمایلی .

امریکا د تیرو پنځه شپیتو کالو په موده کې د نړی په دوه دیرش ملکونو خپل زور ازمایلی چې تازه مثال یی د افغانستان او عراق دی ، دامریکا دغه احمقانه او جابرانه حرکتونو د ظلم او بربریت ټول پخواني ریکارډونه مات کړی دی .

د نوم چومسکې کتاب د روګ سټیت ٦٥ مخ .

د امریکا پخوانی اولس مشر جیمیکارټر په خپل کتاب کې لیکي:

Our Endangered Values : America`s Moral Crisis:

امریکا په اوسني وخت کې د داخلی نظم له نګاه نه د ډیر سخت بحران ښکار ده ، د نړی د هغو پنځه دیرش هیوادونو چې د هغوی کلني امدنی تر ټولو زیاته ده چې په دغه پنځه دیرش ملکونو کې د ټولي وژنی څخه نولس ځله زیاته وژنه یواځې په امریکا کې کیږی.

امریکایی ځوانه انجلی د یوی فرانسوی انجلی په مقابل کې اوه چنده زیات یوه نا جائز ماشوم زیږوی ، او دا په داسې حال کې چې دغه انجونی یو ، یو ځل خپل حمل ضائع کړی هم دی.

د جرمنی د هغو ماشومانو په مقابل کې چې د هغو عمرونه د د دولسو کالو څخه کم وی امریکایی دولس کلن ماشومان پنځه چنده زیات د ایډز ښکار دی
کله چې په امریکا کې د هم جنس پرستو (چې هلک د هلک او جلی د جلی سره واده کوی) څخه د دغه ازادی په باره کې وپوښتل شی نو هغوی بیا داسې وایی: هر انسان حق لری چې په خپله خوښه ژوند وکړی.
نن ورځ طلاق په امریکا کې خپل خطرناک حد ته رسیدلی ، د امریکا د ټولو بالغو امریکایانو پنځه دیرش فیصده وګړو په خپل ژوند کې هرو مرو یو ځل طلاق اخیستی دی.

دامریکاپخوانی اولسمشر جیمی کارټر کتاب:

Our Endangered Values: America`s Moral Crisis.

۲۳ ، ۲۹ ، ۷۵ او ۸۰ مخونه.

په امریکا کې به د بد اخلاقی او بي لاری توب یو څو نمونی ولولو حال دا چې د امریکا هره ورځپاڼه، مجله، تلویزون او حکومتی ویبپاڼې د دی نمونو څخه ډکې دی، یو څو نمونی یی دا دی :
دا وخت په امریکا کې هغه هلکان چې لا بالغ هم نه دی د هغوی جرم کول ورځ په ورځ په دیره تیزی سره زیاتیږی چې په دغه جرمونو کې:
شراب څکل، ناڅاپه او هسی ډزی کول، زناء، لواطت، غلا او داسې نور ډیر شیان شامل دی چې د دی ټولو اصلی لامل هغه فلمونه دی چې په هغی کې دا هر څه ښودل کیږی ، جنسی ازادی او هغه فلمونه او توکې چې جنسی اړیکو نیولو ته لاره هواروی د مور او پلار بی فکری او ډیره ازادی ده .
په امریکا کې د ذهنی مریضانو تعداد د نورو مریضانو په پرتله ډیر زیات دی او هلته د ذهنی سکون او ارام درمل او نشی استعمال نن ورځ ډیره عامه خبر ده په امریکا کې د نشی او هغه دواګانی چې ذهنی او جسمی ارام خلکو ته ورکوی د بلیونو ډالرو کاروبار ته رسیدلی .

نن ورځ په امریکا کې د غټو د کانونو  څخه غلا کول یوه عامه خبره ده  او دا غلا په داسې حال کې کېږی چې په هر دکان او لاره تلویزونی کمره هم لګیدلی وی د دی سره بیا هم هره ورځ غلا کول مخ په زیاتیدو ده او داسې خبرو نه یوټیوب او ویبپاڼي ډکې دی .

په امریکا کې د شرابو ډیر زیات استعمال یوه ساری شکل غوره کړی دی چې د هغی له استعماله ماشومان هم نه دی خوندی، نن ورځ په امریکا کې داسې واقعی دمره ډیری شوی دی چې یو هلک یا کوم سړی د شرابو په نشه کې ناڅاپه په مکتب، حکومتی ودانی، روغتون او یا بازار ډزی کوی او دا هر څه هلته اوس  یو عامه خبره ده.

د شرابو په نشه کې ډوب ډیری کسان یا خو موټر ټکروی، غلا کولو، ځان وژلو او یا هم د نورو وژلو، په زوره زناء کولو او داسې نوری واقعو کې ښکېل وی.

نني سائنس پوهان وایی: هغه کسان چې د ورځي په ډیره کمه اندازه شراب څکې هغه ته باید حکومتونه د واده کولو اجازت ورنکړی او که بیا هم حکومتونه هغه کسانو ته چي  په ډیره کمه اندازه د شرابو څکونکې وی اجازت ورکوی نو بیا پکار ده چې هغوی ماشومان ونه زیږوی ځکه د شراب څکونکې اثرات دهغه ماشومانو ته هم انتقالیږی.

په امریکا کې یو بل ډیر شرمونکې رواج هم شتون لری چې هغوی د خپل جنسی سړښت لپاره خپلی ښځی نورو ته ورکوی او د دی په بدل کې د نورو ښځي د څه مودی لپاره د ځانه سره ساتي او دا کار په زور سره نه تر سره کېږی بلکې څه وخت چې د ښځي رضاء وی او دغه کار ته غاړه کېږدی نو دوی بیا هغه وخت دغه کار کوی.

امریکایی لیکوال ایم هنټ په خپل کتاب:(د سیک شول بی هیور )کې د دغه شرمونکې رواج په باره کې ډیری حوالی او مثالونه ورکړی هغه په خپل کتاب کې لیکلی چې:

دی کار ته په امریکا کې (وائف سویپینګ) وایی او د دغه کار د لا پراختیا لپاره په امریکا کې د (کې هبز) په نوم ډیری اداری او دفترونه هم کار کوی او دغه ځایونو ته یو سړی او ښځه د دی لپاره ورځي تر څو هلته د نورو سره د موافقت او جوړ جاړی نه وروسته خپلی ښځي او میړونه په قانوني بڼه د څو ورځو یا لنډ وخت لپاره بدل کړی .

وګورئ .The Sexual Behavior د نورو معلوماتو لپاره دایم هنټ کتاب

د پاکستان پخوانی وزیر اعظم او د بینظیر بوټو پلار ذوالفقار علی بو ټو د حکومت په دوره کې هم د پاکستان د کراچي په ښار کې دغسی ادراو او کلبونو شتون درلود او هلته به سړیو خپلی ښځي د موقت وخت لپاره په کرایه او یا هم د بل سړی د ښځي په بدل کی ورکولي او ویل کېږی چې په نورو ښارونو لکه لاهور او فیصل اباد کې هم دغه ادارو په پټه کار کاوه چې د ضیاء الحق حکومت په اولو ورځو کې بیا بندې شوې.

: په امریکا کې یو بل شرمونکې کار چې نن ورځ ډیر زیات او عام دی هغه دا دی چې هلته ډیر شرکتونه او فابریکې د خپل جوړو شوو شیانو د خرڅلاؤ په خاطر خپلو اخستونکو ته په رضاء کارانه توګه داسې ښکلی انجونی د جنسی سرېښت او معلوم وخت لپاره هدیه کوی چې دغه انجونی د دغه شرکتونو او فابریکو سره د پیسو په بدل کې کار کوی یا په بله معنی په تنخواه کار کوی ، ځکه امریکایی ټولنه دا فکر کوی چې کاروبار او په کاروبار کې د ښځو شتون لازم او ملزوم دی ، په امریکا کې د هری لوی او غټ شرکت سره د هغو انجونو نمبرونه ثبت وی چې هغوی د پیسو په بدل کې د خلکو سره جنسی اړیکې نیسی او دغه کمپنی بیا د خپل مشتری د خوشحاله کولو لپآره د غه انجونی د څه خت لپاره د پیسو په بدل کې په کرایه اخلی او خپلو مشتریانو ته یی ورلیږی

۱۰۰ مخ Sex In History دلام سیمونز دکتاب

د بد اخلاقی دغه څو مثالونه مو ځکه دلته ذکر کړل تر څو لوستونکې په دی پوه

شی چې په امریکايي ټولنه کې خلک په کوم ذلالت کې ژوند تیروی ، څه وخت چې د یوی ټولنی اخلاق تر دی حده وغورځیږی او هغوی دمره بی حیاء شی نو په دغسی یوه بی حیاء ټولنه کې بیا مثبتې هلی ځلی تر کومه حده ثابته پاتی کېدلی شی ، هغه ټولنه چې د هغوی اخلاق دمره غورځیدلی وی نو هغوی بیا په خپله زوال ته په خپل لاس بلنه ورکوی .

څه وخت چې د یوه هیواد فوځیان چې هغوی د دښمن سره د جنګ لپاره هم روان وی نو د خانه سره د فاحشه انجونو یو ټولګی بیا یی او څه وخت چې د دوی پادری دوی ته د وعظ او نصیحت نه خلاص شی نو د هغه خدمت لپاره ځوانه او زړه راښکونکې جلی لاس په نامه ولاړه وی ، څه وخت چې په یوه ټولنه کې د کاروبار د پراختیا لپاره د فاحشو ښځو نه د دی کار اخستل کېږی تر څو د دغه شرکت د شیانو اخستونکې پری خوشحاله کړی او د هغوی مال واخلی نو یو بی عقل انسان هم بیا په ډیره اسانی په دی یقینی کېږی چې تر ډیره وخته یو قوم هم د داسې اخلاقو په درلودلو سره په خپل حال ثابت نشی پاتی کېدلی

## ۴ لامل : د کورني ژوند تباه کېدل:

کله چې یوه کورني یو موټې او متحده وی نو بیا یوه ټولنه او همداسې هیواد هم متحد وی، په امریکا کې کورني نظام او د هغوی یو والی او اتحاد بیخی شتون نلری، په امریکایی تولنه کې د پیسو سره مینه دمره ډیره ده چې هلته څوک هم دا نه خوښوی چې د کورنی مشر او د هغوی غمخوار و اوسی.

په امریکا کې د پیسو سره د ډیری مینی له امله هیڅوک هم دا نه خوښوی چې د ځپلی مور، پلار، ځوی، لور، میرہ، ښځې او نور خپلوانو غمخوار او کومک کونکې و اوسی، د همدی له امله نن ورځ په امریکا کې نه خو څوک یو ښه پلار دی او نه هم کوم ځویی یو ښه ځویی .

په امریکایی ټولنه کې هیڅ یوی ښځې ته خپل میرہ د قدر ، اهمیت او عزت وړ

نه ښکاری همداسې هیڅ یو میړه خپلی ښځي ته اهمیت نه ورکوی ، نن ورځ په امریکا کې داسې یوه کورنی نشته چې هلته دی یو پلار، مور، ځوی او لور یو ځایی او د یوه بام لاندی ژوند کوي او که چېرته کومه کورنی یو ځای اوسیږی هم نو هغوی به د ډیرو مشکلاتو سره لاس او گریوان وی .

امریکا نن د یوی عجیبه بی رحمی او بی حسي ښکار ده هر کس دا سوچ او فکر لری چې زه ولی د بل کس بوج په خپلو اوږو بار کړم او د هغوی غم وخورم. نن هلته هر سړی دافکر لری او دا وائي چې هر کس دی خپل غم په خپله وخوری او که څوک خپل غم نشی خوړلی نو حکومت دی د هغوی غم وخوری ځکه په امریکا کې هر سړی که هغه لور، ځوی، ورور، خور، پلار، او یا هم مور ده د خپل هوس تابع او ځان پرست دی .

په امریکا کې هر بوډا ، پلار او مور د ټولو څخه د ډیر رحم وړ دی، د دغه بوډا مور او پلار غم هیڅوک هم نه خوری او نه یی هم په قیصه کې دی او د هغوی لپاره یی هلته د اولډ هاوس په نوم خاص او ځاکلی ځایونه جوړ کړی دی،چې هلته بچې خپل زاړه مور او پلار داخلوی چې تر څو د هغوی د غم او خدمت څخه بی غمه شی، ځکه امریکا کې هر انسان ماده پرست او ځان خوښونکې دی او د همدغه ماده پرستی له امله نن ورځ هغوی دمره وخت هم نه لری چې د خپل بوډا پلار او زړی مور پوښتنه وکړی او نه هم هغوی ته دمره اهمیت ورکوی چې بوښتنه یی وکړی او دا کار ورته دمره لوی او سخت ښکاری چې په کلونو، کلونو کې هم یو هلک یا جلی د خپل مور او پلار پوښتنه نه کوی حتی تر دی چې ډیر بچېان د خپل مور او پلار د مرگ نه پس له څو ورځو ، هفتو او میاشتو خبریږی او که بعضی خبر هم شی نو دمره یی د اهیمت وړ نه گڼې.

څنگه چې نن ورځ امریکا ډیره پر مختللی ده نو له دی امله هلته هر کس مجبوره دی چې د ژوند د تیرولو لپاره کار وکړی ، هغه امریکایانو چې هغوی نا

جائزه اولادونه زیږول اوس دوی نا جائز اولاد زیږولو ته هم وخت نلری او د (بي بي کئیر) کودکستان په نومونو یی ډیر زیات مرکزونه جوړ کړي.

په کوم هیواد کې چې یو کس د خپل ماشوم تربیه نشی کولی او هغوی نورو ته خپل ماشومان د پیسو په بدل کې د تربیې او لویولو لپاره سپاری او د دغه ماشومانو مور او پلار د پیسو گټلو لپاره سر گردانه وتلی وی نو څه وخت چې دغه ماشومان را لوی او په ښه او بد پوه شی نو هغوی بیا د کمتری احساس او په نفسیاتی توگه د مرض ښکار وی .

څه وخت چې دیوه خاي مشران د کور څخه و ویستل شی او په داسې ځایونو کې وساتل شی چې هلته د هغوی ساتنه د هغوي د بچېو پر ځای پردی خلک کوی نو دغسی خلک او ماشومان بیا د ژوند نه نا امیده شی چې د ډیری نا امیدی له لاسه اخر ځان و وژنی او یا هم د نورو په وژلو لاس پوری کوی (داسې په سل هاو راپورنه شته چې په امریکا کې کوم کس په مکتب، بازار، مارکېټ او یا هم حکومتی ځایونو کې نور خلک په ډزو ویشتلی وی) کله چې په یوه ټولنه کې ځان وژنه او د نورو وژل یو رواج وگرځي نو بیا داسې او دی ته ورته کارونه د یوه قوم ، ټولنی او ملک د کلکوالي او استحکام لپاره یو لوی خطر گڼل کېږی.

مذهب چې د ټولنی د سمون او کامیابی راز بلل کېږی، نن په امریکا کي د تیرو لسیزو په پرتله مخ په ورکېدو دی داسې راپورونه او لیکنی هر وخت د امریکا په ورځپاڼو او تلویزني پروگرامونو کې راځي او هغوی دا یوه خبره کوی چې چرچ (کلیسا) ته د تلونکو کسانو تعداد ورځ په ورځ په کمیدو دی .

نیوز ویک په خپله یوه نوی گنه د مذهب او د دین سره د مینی په اړه یوه سروی کړی چې په هغه کې داسې راغلی:

که څه هم په امریکا کې لا تر اوسه د هغوی په اند خدای نه دی مړ شوی (العیاذ بالله) خو بیا هم د امریکا په سیاست او ثقافت کې د هغه زور ډیر کم

دی ، نیوز ویک د ۲۰۰۹ د ۴ ، ۱۵ تاریخ .

هغه خلک چې هغوی په خپل سیکولریزم او بی دینه کېدلو فخر کوی په امریکا کې نن ورځ د نولس سوه نوی په پرتله څلور چنده زیات شوی دی، که په نولس نوی کې د دغه بی دینو او سیکولرانو تعداد لس لکه وه نن د هغوی تعداد څلور دیرش لکه دی، په دغه سروی کې دا هم راغلی دی چې د امریکا اته شپیته فیصده خلک دا رایه لری چې د دوی په ټولنه کې د مذهب اثر ورځ په ورځ مخ په کمیدو دی.

سخت دریځه عیسایان بیا وایی چې د هم جنس پرستو او د حمل د غورځونکو په ضد دوی خپل جنګ پرله پسی بایلی، دغه سروی لیکلی هغه مور او پلار چې د نن نه دیرش کاله مخکې یی د یوه ګیلاس شراب څکل ګناه ګڼله د هغوی ماشومان نن په ډیر فخر او ازاده توګه د یوه بوتل شرابو له څکلو څخه خوند اخلي.

د نیوز ویک د ۲۰۰۹ ، ۴ ، ۱۵ تاریخ .

## ۵ لامل : د ماشومانو په پیدائښت کې تر خطرناکه حده کمی :

په امریکا کې کال په کال ابادی په کمیدو ده چې د امریکایی پوهانو او مفکرینو په نظر دا ډیره د خفګان او پام وړ خبره ده.

ټول غرب د مالتس نظریی وهلی دی څکه دوی د ځمکې او غذا د کمیدو د احمقانه ویری له امله د ماشومانو د پیدائښت فیصدی د لیونتوب تر حده کمه کړی ده. څرنګه چې امریکا د غرب سرخیله ده نو نن ورځ امریکا د خپلو کارونو د سرته رسولو لپاره د دومره مشکلاتو سره لاس او ګریوان ده ، امریکا په خپل هیواد کې دمره څوک نلری چې په حکومتی او یا هم شخصی ادارو کې کار وکړی له دی امله د امریکا حکومت هر کال نورو ملکونو ته ویزی ور لیږی (اوس خو د اوباما حکومت اعلان هم کړی چې هلته میشت سل لکه غیر

قانونی کسانو ته ویزی ورکړی ).
په امریکا کې د ځوانانو طبقه ورځ په ورځ کمیږی او حال دا چې هلته اوس د ډیر عمر لرونکې تعداد مخ په زیاتیدو دی.
د هارورډ یوهنتون په نولس سوه اته اتیا کې یوه څیړنیزه مقاله خپره کړی وه چې په هغی کې راغلی ول :
د جاپان او اروپا تر څنګ به په امریکا کې هم په را روانو دریو لسیزو کې د مزدورانو په تعداد کې تر حیرانیدونکې حده کمي پیدا شی.
د دوه زره یو، یوه څیړنیز راپور له مخی په بریطانیا کې د مسلمانانو تعداد شپیته لکه وه.
د ریپپلک ګوند غړی چې د ریاست جمهوری لپاره نوماند هم وه او د تیرو دریو رئیس جمهورانو مشاور پیټرک جی بکانن هم د امریکایانو د نفوس د کمښت او د مسلمانانو د ډیرښت او زیاتوالی اندیښنه ښودلی ده، هغه په خپل کتاب: (د غرب مرګ) کې د نفوسو د احوالو په باره کې لیکلی:
امریکا په داسې حالاتو کې خپل مرګ ته په خپل لاس بلنه ورکوی .
بکانن په خپل کتاب کې په ډیره جدی توګه د امریکا حکومت او خلکو څخه غوښتنه کړی ده چې هغوی خپل نفوس زیات کړی ځکه دا د دوی (امریکایانو) د بقاء خبره ده، د لا نورو معلوماتو لپاره زمونږ د کتاب اوله (۱) ضمیمه وګوری .
د امریکا او اروپا ډیر سیاستمداران او مفکرین د دی ډیره زیاته ویره ښودلی چې که چیرته په اروپا او امریکا کې د ځایی خلکو د نفوس همدا حال وی او مسلمانان ورخ به ورخ ډیریږی ، نو هغه ورخ لری نه ده چې په امریکا او اروپا کې به ډیر ښارونه د مسلمانانو په ښارونو بدل شی .
په اروپایی هیوادونو کې د مسلمانانو له ډلی د مخکې څخه وزیران ټاکل شوی دی چې ښه مثال یی په فرانسه کې د مسلماني ښځینه وزیری راشده ټاکل دی همداسې د بریطانیا د وزیر اعظم په کابینه کې هم د اول ځل لپاره یو مسلمان

شاهد ملک د انصاف وزیر ټاکلی دی .

د جنګ ورځپاڼه ۲۰۰۸ / ۱۰ / ٦ ،، . نوائي وقت ورځپاڼه ۲۱/۵/۲۰۰۷ .

په امریکا کې هم یو مسلمان جنرال ابي زید په یوه لوړه فوځي چوکۍ ټاکل شوی دی او هغه ورځ لری نه ده چې هلته یوه ورځ مسلمان وزیر وټاکل شی او دا لړی به همداسې مخ په زیاتیدو وی.

د امریکا اوسنی تور پوستي رئیس جمهور بارک جسین اوباما هم د یوه مسمان پلار ځوی دی ، که هر څه وی خو دا یو حقیقت دی چې کله د بارک اوباما پلار په خپل ځوی دغه نوم کېښوده نو کېدای شی چې تر یوه وخته به بارک اوباما هم مسلمان پاتی شوی وی، او وروسته بیا مرتد شوی .

په امریکا کې چې د لومړی ځل لپاره خلکو د بارک حسین اوباما نوم واوریده نو ډیرو بیا دا پوښتنه کوله چې دا څه رقم نوم دی ځکه د عیسیانو نومونه داسې نه وی.

کېدای شی ډیری خلک په دی نه وی خبر چې د امریکا په قانون کې د دی بندیز نشته چې یو مسلمان پاچاه شی، خو تر اوسه چې په امریکا کې د مسلمان خوه خپل ځایی چې د هغه خایی د تور پوستو سره کوم تعصب او ظلم کړی دی کېدای شی د تاریخ په پاڼو کې د مره وحشت او ظلم نه وی ذکر شوی .

د امریکا په پارلمان کې د دیموکرات ګوند غړی(کېت الیسن ماوریس) هم شتون لری چې هغه د عیسویت نه توبه ویستی او مسلمان شوی دی او هغه خپل قسم د بائیبل پر ځایی په قران کریم وخوړ او په دوه زره اتم میلادیز کال کې هغه د حج فریضه هم ادا کړه.

د سعودی دحج او عمری مجله : حج او عمره د ۲۰۰۸ کال د حج د میاشت ګڼه.

د امریکا په حکومتی ادارو کې حتی چې د دفاع په وزارت کې هم نن ورځ ډیر

مسلمانان کار کوی ، همداسې په شخصی فابریکو او شرکتونو کې د نړۍ د هر ځایی ځخه راغلی ډیری مسلمانان شته دی چې هلته کار کوی.
د انسان کوښښونه کېدای شی کله نا کله د ناکامي مخ و وینی خو د فطرت غلی او چپ کارونه خپل نښان او چاپ پریدی.

## ٦ لامل: د یهودانو سازشونه :

د امریکا په زوال کې د یهودو هغه ازلی دښمنی هم یوه مهم لامل کېدای شی چې د هغی له امله یهودان د عیسیانو په ضد د سوونو کالو راهیسی کېنه او انتقام په خپلو زړونو کې ساتلی، یهودانو د زرگونو کالونو راهیسی په عیسیانو په هر ځایی او هر وخت کې چې په هغوی یی زور رسیدلی دی داسې ظلمونه کړی چې لا تر اوسه ورته د انسان عقل حیران دی ( ځکه یهودان عیسویان د خپل پیغمبر قاتلین گڼی).
همدا لامل ده چې د یهودو پر ټولو سپیځلو کتابونو کې لکه تالمود ، هلاکا او داسې نور د عیسویانو په ضد په صافو او روښانه ټکو داسې احکام خوندی شوی چې:
تاسو(یهود) چې په هر ځایی او هر وخت کې عیسویان وینی نو هغوی بی له وژلو  ځخه مه پریږدی او دا (زمونږ) پاکه خمکه د دغو مردارو عیسویانو ځخه پاکه کړی .
که ځه هم نن ورخ یهودان د عیسویانو سره په ظاهره ملگرتیا او خوا خوږی ښکاره کوی ( ځکه یهود دغه ښکاره او د خپل هدف ته د رسیدو لپاره داسې کارونه روا گڼي ) خو په حقیقت کې هغوی په پټه توگه خپل هدف ته نژدی کېدل غواړی ، د یهودو تر ټولو د سپیځلی کتاب تالمود ځخه به په دی دریو حوالو اکتفاء وکړو .
١ : که چېرته مو د عیسویانو  په وژلو لاس بر شو نو بیایی په ډیره بی رحمی و

وژنی او که تاسو ته دا موقع په لاس درنغله چې عیسویان و وژنی نو لږ تر لږه خو دومره وکړی چې هغوی زخمی کړی او که د هغوی د زخمی لوکلو موقع هم په لاس درنغله نو هغوی ته ضرر ور ورسوی او خپه غاړه خلاصه او د دین فرائض پوره کړی .

۲ :زمونږه (یهودانو) دا غلامی به تر هغی همداسې دوام وکړی تر کومه چې مونږ دغه جینټائلر (عیسویان) نه وی نیست او نابود کړی.

۳ :د سلیمانی هیکل د ورانیدو نه وروسته اوس زمونږ لپاره یوه بله او مهمه لویه قربانی لا پاتی ده او هغه قرباني د عیسویانو د ځمکې له مخ څخه نیست او نابود کول دی .

د مشهور پادری أئي، بي ټس کتاب: تالمود نه پرده پورته شوه ۱۱۱ مخ .

څنګه چې دا مهال په نړیوال سطحه د عیسویانو تر ټولو قوی ځائي او ټاټوبی امریکا ده نو له دی امله یهودان په پټه او یا هم په ښکاره تل د دی په لټه کې دی چې امریکا ته ضرر ورسوی او خپله مذهبی عقیده او فریضه سرته ورسوی .

په نولس سوه اوه شپیته کې اسرائیلو د مصر د سیناء په سیمه کې د امریکا په بحری بیړې ( یو ایس ایس برټي) هوائي حمله وکړه چې د هغی له امله د امریکا څلوردیرش بحری فوځیان مړه او یو سلو یو اویا نور ټپیان شول او پاتې فوځیانو چې د وړو کشتیو په واسطه یی د ځان ساتلو کوښښ کوه هغه یی هم و ویشتل ، د دغه حملی څخه وروسته بیا د اسرائیلو دولت په ډیره معصومانه توګه د امریکا څخه ښښنه وغوښته او ویی ویل چې : مونږه دغه بحری بیړی نه وه پیژندلی .

حال دا چې په دغه بیړی د امریکا بیرغ له ډیر لیری څخه ښکاریده او په غټو توری پری لیکل شوی وه چې دا د امریکا بحری بیړی ده ، په هغه وخت کې د امریکا جمهور رئیس جانسن هم په ډیره عجیبه ډول په دغه خبرو هیڅ ځان پوه نه کړ.

د پآل فنډلی کتاب د اسرائیلو فریبونه ۷۹ مخ .

د جارج واشنګتن او جان ایف کېنيډي د مړینی په باره کې هم داسې را پورونه شته چې دا دواړه یهودانو وژلی دی.

د نهم ستمبر مشهوره واقعه چې په هغه کې د امریکا دوه نړیوال تجارتی مرکزنه ونړیدل د هغی په باره کې اوس نړی ته دا روښانه شوی چې دا کار چا او د څه لپاره وکړ .

د نړی ډیر مفکرین او شنونکې دا عقیده لری او د دی اعتراف یی هم کړی چې دا واقعه د یهودو یوه جوړه شوی دسیسه وه چې په یوه غشی یی دوه ښکاره وکړل .

اوس مهال په نړی کې په لسګونو داسې مستند کتابونه چاپ شوی او په اساني سره پیدا کېږی چې د نهم ستمبر اصلیت یی روښانه کړی دی .

ډاکټر پال رابرټس په خپل یوه مضمون کې داسې لیکلی :

د نهم او یولسم ستمبر واقعی د بوش حکومت، سی آئي ای، او د موساد په ګډه یوه جوړه شوي دسیسه وه چې هدف یی د عربی او اسلامی نړی تر خپل کنترول او واک لاندی رواستل او بیا په افغانستان او عراق د حملی کولو جواز پیدا کول ول .

ډاکټر پاول په خپل مضمون کې دا هم لیکلی :

د ایطالیا پخوانۍ ولسمشر (فرانیسکو ګوسیګا) د ایطالیی تر ټولو پخوانی او مشهور ورځپاڼي( کوریر دیلا سیرا ) سره په یوه مرکه کې ویلی ول: د نهم او یولسم ستمبر واقعی د سی آئي ای او موساد په ګډه یو جوړه شوی دسیسه وه .

د ډیلی ټائمز ورځپاڼه ۱۳/۲/۲۰۰۸ .

د نهم او یولسم ستمبر د واقعي د حقیقت په باره کې په لسګونو کتابونه لیکل شوی او په ویبپاڼو کې په سلهاؤ څیړنیزی لیکنی هم شته چې د مثال په توګه تاسو د نورو معلوماتو لپاره دا کتابونه کتلی شی :

دپال فنډلی کتابPawns in the Game
د ډیوډ ډیوک کتاب: سازشونه.
د ولئیم گائي کارکتاب Deliberate Deceptions
د پال فنډلي مشهور کتاب: They dare to speak
د امریکا ډیری سیاستمداران او ژورنالستان د دی اعتراف کوی چې د امریکا په حکومتی ادارو او پنټاګون کې ډیر تعداد د یهودانو دی.
ډیوډ ډیوک چې د یهودو مخالف مشهور لیکوال دی هغه په خپله ویبپاڼه کې لیکلی چې :
زه به د امریکا د سلامتیا په خاطر تر هغی د یهودو پر ضد جنګ ته دوام ورکړم تر کومه چې مړ شوی نه یم د نورو معلوماتو لپاره د . www: davidduke.com ویبپاڼه کتلی شی :
د امریکا د مشرانو پخوانی غړی پال فنډلی په خپل مشهور کتاب : (دي ډیئر ټو سپیک) کې په امریکا کې د یهودو د واکداری او تسلط په باره کې په سلهاؤ مثالونه لیکلی دی او د امریکا حکومت ته یی وړاندیز او مشوره ورکړی ده چې د یهودو د اثر او رسوخ نه ځان وساتی، هسی نه یوه ورځ د دوی له لاسه امریکا د خاورو لاندی شی .
هغه په خپل کتاب کې لیکلی:
د امریکا په ډیروحکومتی ادارو کې چې په هغوی کې فضائي ، بحری او ځمکنی چارواکې دی ډیر یهودان دی او په دی باندی پنټاګون تر ټولو ښه خبر دی او په خپله پنټاګون کې هم ډیری یهودان شته خو امریکایی چار واکې د خپل کار او ژوند له ډاره د دغه یهودو په ضد څه نشی ویلی.
د پال فنډلي کتاب ٦٥ مخ، They dare to speak
د امریکا یو بل مفکر هال ټرنر په خپله ویبپاڼه کې داسې لیکلی :
اصلا اسرائیل د امریکا په سترګو کې خاوری شیندی ، په تیرو وختونو کې چې

یهودانو د امریکا سره کوم زیاتی کړی د هغه ټولو څخه امریکا ښه خبره ده خو د دی سره بیا هم د امریکا حکومت او امریکایی وګړی د اسرائیلو په هو کې هو او نه کې نه کوی .
. ۱۳ / ۷ / ۲۰۰٦

استینلی هیتن چې د رمز فیلډ او وولف وتز ډیر نزدی ملګری پاتی شوی هغه د بوش په حکومت دا تور لګوی چې د نهم او یولسم ستمبر واقعه د دوی جوړه شوی ده هغه ویلی:
بوش، کولینډا رائس، ډک چینی، او رمز فیلډ د نهم او یولسم ستمبر پلان جوړ کړی وه او هغوی همدی پلان ته عملی جامه ور واغوسته ، استینلی هیلتن وايي :
زما سره د دغه واقعی او د دوی په باره کې ډیر موثق او مستند ثبوتونه دی ، د نهم او یولسم ستمبر د واقعی په باره کې د تیرو پنځه دیرش کالو راهیسی پلانونه جوړیدل ، د نورو معلوماتو لپاره وګوری :
www: prisonplanet.tv/audio/09124hilton.html
د ایټالیا پخوانی اولس مشر فرانسیسکو کوسیګا د ایټالیا تر ټولو پخوانی او مشهوری ورځپاڼي سره په یوه مرکه د نهم او یولسم ستمبر د واقعو په باره کې ویلی دی:
د نهم ستمبر په واقعه کې د سی آی ای او موساد په ګډه لاس وه ، که څه هم القاعده دا حمله قبوله کړی وه چې د نهم ستمبر واقعه مونږ کړی خو د نړی ټول قوی استخبارات په دی تر ټولو ښه پوه او خبر دی چې دا کار د سی آئی ای او موساد په یوه طرحه شوی پلان سرته ورسیده ، ځکه امریکا غوښتل له یوی خوا اسلامی نړی او عربي هیوادونه تر خپل فشار او واک لاندی راولی او له بلی خوا په افغانستان د حملی کولو لپاره لاره هواره کړی .
د Correire Della Sera ورځپاڼه د ۲۰۰۷ م د نومبر ۳۰ تاریخ.

په یاده دی وی چې د انګلیسی فلمونو مشهور جوړونکې هالیو وډ په نویمه لسیزه کې داسې یو انګلیسی فلم جوړ کړی وه چې په هغی کې دوی داسې ښئی چې دغه دوه تجارتی مرکزونه په طیارو سره ورانوی .

::::: د رونالډ ریګن د حکومت په دوره کې د اقتصاد دوزارت معین د هو ور انسټی ټیوشن، انډی پینډټ انسټی ټیوټ ، کېوټي انسټي ټیوټ ادارو غړې او د مشهور امریکائي ورخپاڼي وال سټریټ جرنل ادری مشر ، مشهور لیکوال او شناند پاَل ګریګ رابرټسن د نهم ستمبر واقعه په ډیرو قوی دلائلو سره ردوی ، هغه د نهم ستمبر د واقعي په باره کې ډیر څه لیکلی هغه د خپل کتاب په اخره کې داسې لیکې :

تاسو څه پوهیږی او داسې څه شواهد لری چې د نهم ستمبر واقعه مسلمانانو کړی ده؟

ایا تاسو په دی خبر یی او یا هم دا درته معلومه ده چې په نیویارک کې په نهم ستمبر دوه تجارتی بلډونګونه نه بلکې دری تجارتی بلډنګه تباه شول ، ایا تاسو د دریم بلډنګ د تباه کېدلو څخه خبر  او  هغه مو د را غورځیدلو په وخت کې ولیده ؟

تاسو په دی څنګه یقین کولی شی چې دوه طیاری هغه دوه تجارتی مرکزونه د ځمکې سره برابروی خو د پنټاګون دیوال هم نشی خراپولی؟

تاسو او د نړی نور خلک څکه په دغه خبرو یقین کوی چې تاسو ته د امریکا حکومت د تلویزون په پردو او هلته د مخکې نه په نصب شوی کمرو هغه څه در وښودل چې هغه د امریکا حکومت غوښتل چې تاسو یی و وینی ؟

ایا تاسو ته حکومت او هلته د مخکې نه په لګیدلو کمرو هغه دریم تجارتی بلډنګ در وښود چې په همدغه وخت د دغه دوو نورو تجارتی مرکزونو سره تباه شو ؟

نه تاسو هیڅ وخت هغه دریم بلډنګ ونه لیده او نه هم د دی نه خبر شوی چې

هلته دریم بلډنګ هم د دغه دواړو سره یو خای وران او پّ ځمکه را وغرځید ځکه تاسو صرف دوه طیاری او دوه بلډنګه ولیدل او حکومت همدا غوښتل چې تاسو یی و وینی ؟

حکومتونه د خپلو ګټو لپاره همیشه دروغ وائي او څه وخت چې هغی د خپلو موخو او ګټو لپاره دروغ وایی نو بیا داسې دروغ وائي چې عام وګړی بیا هغه سل په سله رښتیا ګڼي او په هغه دروغو د رښتیا او نه پېيدونکې حقیقت یقین کوی ، حکومتونه تل د عامو خلکو په سترګو کې خاوری شیندی ، په حکومتی ادراو کې لوړ چارواکې خپلو ما تحتو ته تل دا وایی چې :

په خپل مقصد کې د کامیابیدو په خاطر خلکو ته په داسې ډول فریب ورکړی چې هغوی پری هیڅ پوه نشی، وګورې :

WWW: informationclearinghouse.info/article1451.html

## ۷ لامل : اقتصادی بحران:

د امریکا د زوال یو بل ډیر مهم لامل د امریکا اقتصادی بحران دی چې د دغه اقتصادی بحران له امله د امریکا زوال اوس په هر دیوال لیکلی ښکاری .

امریکا چې پرون یی داسې یو قوی اقتصاد درلوده چې انسان کله هم دا نه شو ویلی چې یوه ورځ به په امریکا کې دمره بد حالت رامنځ ته شی چې د امریکا لوی لوی بنکونه به قرضداره او ډیری خلک به یی بی روزګاره شی، خو نن په امریکا کې ډیر لوی او مشهور بنکونه داسې شوی چې هغوی د قرضونو لاندی ډوب دی.

نن ورځ په امریکا کې ډیر لویی نړیوال شرکتونه او فابریکې چې د هغوی د مزدورانو او کارکونکو تعداد لکونو ته رسیده نن ورځ د اقتصادی بحران له امله دغ لوی شرکتونو او فابریکو دیته مجبوره شوی چې خپل کاریګر د څو زرو تعداد ته را کم کړی .

همداسې په امریکا کې د کورونو قیمتونه ډیر را کم شوی خو بیا هم هلته داسې

ځوک نشته چې د یوه کور د اخستلو وس ولری ، د امریکا دغه اقتصادی بحران په ټوله نړی کې یو قیامت جوړ کړ چې ډیر ملکونه یی د ځانه سره په اقتصادی بحران کې کش کړل .

د امریکا استخباراتی سبکې د دی اعتراف کړی چې: نن ورځ چې امریکا ته کوم مشکلات ور پیښ دی په هغه کې د ټولو نه لوی مشکل اقتصادی بحران دی ، د استخباراتی شبکې مشر ډینس بائیر ویلی : نړیوال اقتصادی بحران او د هغی له امله په نړی او امریکا کې د بی ثباتي دغه اور د امریکا لپاره ډیر لوی خطر دی . ۲۰۰۹ /۲ /۱۴ .

د یوه راپور له مخی د بی روزګاری او د کار ځخه د مزدورانو د شړلو واقعی دمره ډیری شوی چې د امریکا ولس مشر بارک اوباما خو د تلویزونی وینا نه مخکې دا روښانه کړه چې د مائکرو سافټ او په امریکا کې نور پنځه نړیوال شرکتونو په یوه ورځ کې د زرګونو کار کونکو ځخه ځان خلاص کړی دی ، هغه دا خبره هم کړی وه چې په را روانو وختونو کې به اقتصادی بحران نور هم مخ په ریاتیدو شی.

د دغه راپور د جوړونکې له قوله د امریکا په هغو خایونو کې چې هغه د کاروبار مرکزونه دی هلته اوس ډیر داسې لوی ، لوی دکانونه او دفترونه لیدل کېږی چې په هغوی یی د (کرایی لپاره خالی دی) لیکل شوی وی ، د کورونو او د فترونو په کرایو کې تر ډیره حده کمی راغلی او داسې یو ځوک نه پیدا کېږی چې د یوه خایی پوښتنه وکړی تر ځو په کرایه یی ونیسی .
( ۲۰۰۹ / ۲ /۱ ) .

د روسی ولسمشر ولادیمیر پوټین ویلی:
زمونږه د اقتصاد د منځه تللو ذمه وار امریکا ده ، هغه په خپلو خبرو کې زیاته کړه چې: د بوش حکومت او د هغی وزیر خارجه کولینډ رائیز په دوه زره اته کې دا دعوه کړی وه چې امریکا یو ډیر قوی او په اقتصادی لحاظ یو ډیر محکم

هیواد دی حال دا چې د شپږو میاشتو په ډیره کمه موده کې د وال سټریټ نه د غټو او نړیوالو شرکتونو او تجارانو ورکېدل د امریکا د بیرونی پالیسیو د ناکامیدو ښکاره ثبوت دی، پوټین زیاته کړه:

د امریکا هغه لوي ، لوي شرکتونه چې د ۲۵ کالو په اوږده موده کې ئي په نړی کې خپل حیثیت جوړ کړی وه هغه اوس د یوه کال په لنډ وخت کې دی حد ته ورسیدل چې هغوی ته اوس خپل راتلونکې په خطر کې ښکاری.

د ۲۰۰۹ میلادی کال په ډیوس کې د ورلد اکنامک فورم ته د پوټین خطاب .

رښتیا هم هغه امریکا چې مخکې به یی د نړی هر هیواد ته قرض ورکوه اوس د هغه هیواد دا حال دی چې ټریلیونونه ډالر قرضداره دی، د یوی څیړنی له مخی د دوه زره نهه په اخرنی میاشتو کې د امریکا حکومت د څوارلس ټریلیونه نه د ډیری خساری سره مخ دی، امریکا د مالی مشکلاتو نه د خوندی کېدلو په خاطر د خپلو وسائلو د بی ځایه استعمال دمره ډیر کړ چې د تیر کال په مقابل کې دا کال د امریکې حکومت نهه ټریلیونه او دوه نوی بلیونه ډالر زیات دی چې د نولس سوه پنځه څلویښت نه وروسته دا تر ټولو  لوړه او نه هیرویدونکې خساره ده . د جنګ ورځپانه د ۲۰۰۹ م کال ۱۰ / ۱۸ تاریخ .

د اوسنی نړیوال مالی بحران په نتیجه کی چې کومه سروی شوی د هغی له مخی په را روانو څو کلونو کې به چین په نړیواله کچه په اقتصادی لحاظ دویم هیواد وی ، په دغه سروی کې راغلی چې : د تیرو دیرشو کلونو په موده کې د چین اقتصاد نهه اشاریه یو فیصده زیات شوی دی چې د چاپان دغه اقتصادی پرمختګ یو فیصد دی ، د نړی اکثره اقتصاد پوهان په دی نظر دی چې چین به په نزدی وختونو کې د نړی تر ټولو لوی او قوی اقتصادی هیواد وی دا به داسې حال کې چې جاپان اوسمهال دنړی اولنی اقتصادی هیواد دی .

نړیوال اقتصادی فورم ۲۰۰۹ /۱/ ۲۰ .

د امریکا حکومت دری نور بانکونه هم بند کړیدی چې هغه د ایفنټی بانک ،

بریډ فورډ او د مین سټریت بانکونه دی چې د دغه دریو واړو په شمول د ټولو بند شوو بانکونو شمیر ځلور اتیاؤ ته رسیږی.

د دی نیوز انگلیسی اخبار ۲۰۰۹ /۸/۲۹ تاریخ .

که څه هم دروس د توټه کېدلو ډیر نو عوامل هم ول خو تر ټولو غټ او قوی عامل یی د روس د اقتصاد دزوال سره مخ کېدل وه ، روس چې په افغانستان کې یی ډیر ظلمونه کړی ول او افغاني مجاهدینو په تش لاس (د مجاهدینو سره د امریکا کومک وروسته شروع شو )، ایمانی جذبی او د نیکونو څخه ور پاتې میراث روس داسې په گونډو کړ چې افغانستان خو لا په خپل ځایی هغه خپل د کلونو ، کلونو مستعمری هم له لاسه ورکړی ، په افغانستان کې د روس د جنگ د اوږدیدو له امله د روس اقتصاد نور ځواب ورکړ او په روسیه کې په میلیونو خلک سرکونو ته را و وتل .

د دویم نړیوال جنگ نه وروسته د انگلستان اقتصاد هم په گونډو شو چې د هغی له امله انگلستان د ټولو اشغال شوی هیوادونو څخه په کلار ، کلار ځان خلاص کړ او هر هیواد ته یی په خپله طریقه خپلواکې ورکړه او خپل سلطنت یی د اوسنیو حدودو پوری محدود کړ د یوه هیواد د سالمیت او گډ وډی کې د اقتصاد ډیر مهم رول وی .

څه موده وړاند د نړیوالی تجارتی پیسو ډالر به مقابله کې اروپائی اتحادیی د یورو په نوم پیسی جوړی کړی، تر څو په نړیوال تجارت کې د اروپا اتحادیی ته گټه ورسیږی او یورو د ډالر په مقابله کې مستحکمه شی، تر کومه چې یورو لوړیږی نو ډالر به لاندی را غورځیږی او دغه کار به د امریکا اقتصاد ته یوه ضربه ورکوی.

د مالیزیا پخوانی ولسمشر مهاتیر محمد هم په یوه اسلامی کنفرانس کې د اسلامي ملکونو له مشرانو څخه غوښتی وه چې اسلامی ملکونه باید یو تعلیمی نصاب او د دینار په نوم پیسی ولری خو ډیری اسلامی ملکونو چې د امریکا

غلامان دی په دی خبره غوږونه ونه گرول.

د نړیوال بانک مشر رابرټ زوئلک دا خبره ډیره د پام وړه ده هغه ویلی:

ډالر به تر ډیره وخته د نړیوال تجارت نمائنده روپی پاتی نشی، د نړیوال بانک مشر رابرټ زوئلک د غه خبری د امریکا په یوه پوهنتون کې کولی هغه زیاته کړه :

په را روان وخت کې به د ډالرو په مقابله کې ډیری نښی پیسی د نړیوال تجارت ځایی ونیسی .

World economic news 2009 / 8 / 16

د دوه زره نهه د یوه را پور له مخی د امریکا حکومت په را روانو دریو کلونو کې مجبوره دی چې د قرضونود خلاصولو لپاره باید پنځه دیرش ټریلیونه ډالر پور واخلی. (د ۲۰۰۹ میلادی کال ۱۱ میاشت ۲۴ تاریخ ).

اقتصاد پوهان دا سوال لری چې : که چېرته د صنائعو او نور نړیوال لوی شرکتونه د امریکا حخه بیرون په نورو ملکونو کې همداسې جوړېږی نو د امریکا خلک به بیا کارونه څنګه پیدا کوی او څه به خوری ؟.

د پال روبرټس د اندازی له مخی : د امریکا اوسنی حاکمیت به د دوه زره او څلور ویشت پوری نه وی .

لیکوال او شناند راشد شاذ بیا داسې وایی:

په کوم ځایی کې چې جنسی ازادی او دغه ازادی د انسانیت تر ټولو لویه درجه او حق گڼل کېږی او هغه ځایی چې هلته جمهوریت تش په نوم وی او د یو څو سرمایه دارانو تر ولکې او کنترول لاندی وی ، په کوم ځای کې چې د ارزانه مزدورانو په پیدا کولو کې د انسانانو نړیوال قاچاق کېږی داسې یوه هیواد (امریکا) به یوه نه یوه ورځ د زوال سره مخ شی .

د پیام ورځپاڼه د جون څوارلسمه ۲۰۰۹ .

امریکایی لیکوال جان ایف ویل وورډ په خپل کتاب کې چې په نولس سوه

نويکې چاپ شوی داسې ليکې:

په نږدی راتلونکې وخت کې به په خليج او عربي ملکونو کې داسې حالات پيدا شی چې له امله به يی د نړی په سياسی او اقتصادی لحاظ يو نوی بدلون را منځ ته شی چې د هغی له امله به په همدغه ځايونو کې يو نوی انقلابی شخصيت راښکاره شی.

جان ايف ويل وورډ ليکې : ددغه بدلون لپاره د نړی اوسنی حالات د يوه ښه ستېيج کار کوی.

خلورم باب: امريکا (john fwildwood), Armageddon, oil and the Middle East Zondervan publishing house 1990 USA

په پاکستان، عراق، افغانستان او نړی په نورو مختلفو هيوادنو کې د امريکا تر اوه سوه زياتی فوځی اډی، او ددغه جنگونو ځنډيدل نن د امريکا په خزانه باندی يو ډير لوی بار دی د نړی يو هيواد هم د اوږدو جنگونو وس نلری، په سلهاؤ داسې مثالونه شته دی چې جنگونه د اقتصادی مشکلاتو له امله نيمگړی پاتی شوی دی.

امريکا چې په افغانستان او عراق کې کوم جنگ کوی او هلته يی کوم قسم وسله استعمال کړه، نن ورځ امريکا د همدغه جنگ د مصارفو له لاسه قرضداره ده، تر اوسه د امريکا په دغه نړيوال تروريزم باندی په ټريليونو ډالرمصرف شوی دی که چېرته امريکا دغه پيسی په خپل هيواد کې مصرف کړی وی کېدای شی دمره زر د زوال په لور نه وه روانه شوی .

د يوه راپور له مخی چې په دنيا کې هرکال د اته نيم ټريليونو ډالرو وسله اخستل کېږی چې په دغه پيسو کې يواځې د امريکا برخه څلور نيم ټريليونه ډالره ده . (٢٠٠٦ /٥ /٣ ).

د بنک کارډونو (کريډټ کارد) پر مخ تللی فيشن هم د امريکا وگړی له پيسو خلاص کړی دی ، ځکه که د دوی په جب کې څه وی او که نه وی بيا هم هر

څه اختستلی شی او همدی فریب د کلونو راهیسی امرکایی وګړی په خپل جال کې را ګیر کړی دی ، که یو کس څه واخلی او هغه په خپل ټاکلی وخت بنګ ته پیسی ورنکړی نو بنکونه بیا د دوی کورونه خرڅوی .

په امریکا کې د سود ظالم او دردونکې نظام امریکایان په قرضونو کې ډوب کړی دی او د ټولی امریکا بانکونه د یو څو کسانو ملکیت دی .

د امریکا د موټر جوړولو نړیواله فابریکه جنرال موټرز د امریکا حکومت څخه د مرستی غوښتنه کړی ده او ویلی یی دی چې که د امریکا حکومت د هغوی مرسته ونکړی نو دغه فابریکه به په را روانو څو میاشتو کې قرضداره شی، شنونکی وایی:

د جنرال موټرز د فابریکې سره کومک او مرسته کول څه اسانه او وړه خبره نده او دا کار به ډیر وخت ونیسی ځکه د جنرال کمپنی د نړی د لویو فابریکو څخه ده ، په یاده دی وی که چیرته دغه فابریکه قرضداره شی نو دا به د امریکا په تاریخ کې اولنی او په نړیواله کچه څلورمه لوی قرض وی . (۲۰۰۹ / ٦ /۲ ).

که چیرته د امریکا حکومت دغه فابریکه ملی هم کړی نو د امریکا حکومت به د دغه فابریکې یو لک کاریګر د کار څخه وباسی ځکه دمره غټ بوج د امریکا حکومت هم په خپلو اوږو نشی اخیستی ، د دغه فابریکې د قرضداره کیدو لامل د موټرو د اخستونکو نه پیدا کیدل دی.

په امریکا کې تقریبیا هر شی که هغه موټر، کور، دکان او یا هم روزمره ضروریات دی په کریډټ کارډ اخستل کیږی د دوی دغه پیسی بنک ورکوی او بنک د دوی څخه په سود دوه چندی پیسی اخلی، کله چې یو کس چیرته په کوم شرکت او فابریکه کې کار پریږدی نو د هغوی تنخواه بنده شی، کله چې د دوی تنخواه بنده شی نو بیا پیسی نه لری چې بنک ته یی ورکړی او دا سلسله بیا تر دی حده را ورسیږی چې ده کوم موټر اخیستی وی هغه شرکت خپل موټر بیرته ترینه بوځي ځکه بینک پیسی نه وی ورکړی، او د کور خرڅونکې خپل کور

او همداسې دوی د بنک نور هم قرضداره شی ځکه دوی ته چې بانک کومې پیسې ورکړی د هغه پیسو سود ورپسې دوه چنده کېږی.
هر وخت چې داسې حالت رامنځ ته شی نو بیا خلک په ذهنی او او نفسیاتی مرضونو اخته کېږی او بیا په داسې یو خطرناک موړ کې نه خو داسې څوک پیدا کېږی چې دوی ته ډاډ گیرنه ورکړی او نه هم د دوی سره د دی د مشکلاتو کوم حل وی.
یهودانو د کریډټ کارډ دغه ډرامه د دیری مودی او فکر نه ورسته شروع کړه او د دوی دغه ډرامه اوس په ټوله نړی کې مخ په پراخیدو ده او تقریبا اکثره نړیوال یی په خپل جال کې راگیر کړی دی.
احمد تهامسن چې نوی مسلمان شوی دی هغه په خپل کتاب دجال کې لیکي:
د کریډټ کارډ په نړیوله کچه جوړول او خلکو ته داسانتیا د ورکولو د ټولو نه لوی هدف دا دی چې خلک د بنکونو د نظام نه را جلب کړی او بیا په دغه طریقه دوی په اسانی سره کولی شی چې هر کس په ډیره اسانی او ښه طریقه کنترول کړی . د دجال کتاب ۱۱۱ مخ .
مشهور ژورنالست رابرت سیموئل مشهور انگلیسی نیوز ویک په یوه گڼه کې داسې لیکلی ول:
دا نن چې په امریکا کې کوم حال دی لږه موده مخکې چا هم دا نشو ویلی چې دا به پیښیږی، امریکایان د عیش او ارام سره عادی شوی دی او دوی اوس د دغه ارام او عیش نه بغیر ژوند نشی کولی ، کېدای شی د نوی او اضافه مالیی سره حالت نور هم کړکېچن او بدتره شی .
نوم چومسکې وایی :
د امریکا اقتصاد ته اوس د ټولو نه لوی خطر د صحت په برخه کې د مصارفو زیاتوالی دی، که د مصارفو دغه حالت همداسې روان وی نو د دغو مصارفو په

مقابل کې به د ډېری زیاتی پیسی هم هیڅ نه وی .

Daily times 2009/02/03

اقتصادی بحران د یوه هیواد لپاره تر کومه حده خطرناک وی د دی اندازه به د ائی ایم ایف د دغه ګواښ نه معلومه کړو:

د اقتصادی بحران د لیری کولو لپاره باید حکومتی چارواکې مناسب او پر ځای رول ولوبوی او که دوی داسې ونه کړی نو دا هیوادونه به د زوال سره مخامخ شی او بیا به یی هیڅوک هم مخه ونشی نیولی.

په یاده دی وی چې ایی ایم ایف دغه ګواښ څو هیوادونو ته کړی وه . ١٦/٠٣/٢٠٠٩ .

مشهور امریکایی اخبار واشنګتن ټائمز په څپله یوی ګنه کې د امریکا حکومت ته خبرداری ورکړی او لیکلی یی دی:

د ویتنام د جنګ نه پنځه دیرش کاله تیر شول او نن د امریکا شپیته فیصده خلک دا وائي چې د امریکا حکومت په غلطه لاره روان دی ، د افغانستان په جنګ کې د امریکا حکومت په یوه پوځي لس لکه ډالر ( یو میلیون) هر کال مصرفوی چې د دی له امله نن امریکا یو سل او شل ټریلیونه ډالر قرضداره ده او په را روانو څو کالو کې به دغه قرض دوه چنده شی او امریکا د عراق دجنګ څخه وروسته د ټریلیونونو ډالرو بل جنګ نشی زغملی.

اخبار لیکلی:

لس تریلیونه ډالر هغه پیسی دی چې د دی په وسیله انسان د ځمکې نه تر لمر پوری سفر کولی شی او که وغواړی په همدغه پیسو د ځمکې نه تر سپوږمی پوری دوه سوه واره تللی شی .

اخبار لیکلی: اوس مهال په امریکا کې پنځه لس میلیونه خلک وزګار دی او دا تعداد ورځ په ورځ په ډیریدو دی.

Washington times 2009 / 12 / 16

که فکر وکړو چې امریکا دغه پیسی په څه شی لګولی نو دا به راته معلومه شی چې امریکا دا پیسی د اقتدار او هوس په نشه کې مصرف شوی.

امریکا په دغه پیسو روغ انسانان د مرګ خولی ته ور اچولی دی او نور زرګونه روغ انسانان یی معیوبه کړی ، په دغه پیسو امریکا افغانستان او عراق لوټه ، لوټه کړی او د دوی ډیر تاریخی اثار یی له خاورو سره برابر کړی دی دوی یی څو لسیزی وروسته تاریخ ته رسولی .

په پورتنیو کرښو کې مو ولوستل چې د اقتصاد په تباه کولو کې د یهودو د استخباراتی شبکې او د یهودو نړیوال تنظیم فری میسن هم لاس شته، چې د فری میسن د مذهبی عقائدو او دسیسو نه ټوله دنیا خبره ده ، فری میسن د یوه قوم او هیواد په بربادولو کې د هر رقم چل او فریب څخه کار اخلی.

د نړی تر ټولو اقتصادی او مالی کاروبار د یهودانو په لاس کې دی ښه مثال یی د روز شیلډ او بینک اف انګلینډ دی.

د امریکا په افتصاد کې د یهودو د واک او کنترول په باره کې د کاناډا یو فوځي ( ولئیم ګایی کار) یو کتاب لیکلی چې د هغه دغه کتاب بیا وروسته ډیر نړیوال شهرت پیدا کړ ، هغه په خپل کتاب: ( پانز ان دی ګیم ) کې د ثبوتونو سره دا خبره لیکلی چې د امریکا په اقتصاد کې د یهودو ډیر مهم رول دی هغه لیکلی:

بینګ اف انګلینډ په امریکا کې د خپلو ګټو په خاطر الیکذینډر هملټن د خپل بانک مندوب وټاکه، الیکزینډر هملټن په اتلس سوه اویا کې د امریکا حکومت څخه د یوه بانک د جوړولو غوښتنه وکړه ،هملټن د دغه بانک د جوړو اصلی هدف د امریکا ټول سره زر په خپل تصرف کې راوستل وه .

په اتلس سوه دری اویا کې الیکزینډر هملټن او د هغه ملګری رابرټ مارس د ببینک اف امریکا په نوم د یوه بانک د جوړولو اعلان وکړ ، رابرټ مارس د اوه کلن مسلسل جنګ نه وروسته په دی وتوانیده چې د امریکا خزانې خپلی کړی ، هغه د ښه یقینی کېدلو په خاطر هغه پاټې دوه لکه او اوه زر ډالر هم د امریکا د

خزاني نه را و ویستلی او په خپل بانک کې یی واچولی .
همدغه بانک له یوی خوا د امریکا اولس د اول خط غوندی استعمال کړاو له بلی خوا یی دوی تر دی حده تیر ویستل چې ورځ په ورځ یی د سخت مالی بحران سره مخامخ کړل .
لږ وروسته دغه بینکونو یوه نوی طریقه را و ویسته تر څو په دی وتوانیږی چې هر کس په خپل کنترول کې راولی او هغوی په مالی توگه بیخی کمزوری او محتاج کړی د دوی دغه نوی طریقه څه داسې وه چې هر انسان کولی شی چې د لږ ضمانت په بدل کي د بانک څخه قرض اخیستلی شی .
د دغه کار په ښه مشهورولو کې د کنترول شوی میډیا تر ټولو لوی لاس وه .
دغه میډیا داسې اعلانونه جوړ کړل چې خلک یی دیته مجبورول چې د بانکونو څخه قرض واخلی ، هر چا به ویل چې د امریکا خلک او حکومت د نړی تر ټولو مالداره او مستحکم دی ، هر امریکایی کولی شی چې د ډیرو لږو پیسو په بدل کې خپل کاروبار شروع کړی ، هماغه وه چې هر سړی چې هغهد هر حیثیت څښتن وه د بانکونو نه پیسی قرض کړی او د دی په بدل کې یی ځمکې، کورونه، سره زر، او داسې نور شیان ظمانت ورکړل.
د بانکونو مشرانو د همدی مقصد لپاره ډیر څه وکړل او کوی یی
د امریکا د انقلاب باب Pawns in the gam د ولئیم گائي کار کتاب
د امریکا مالی بحران یو بل ښه مثال هلته د ډیرو امریکایانو د بی کوره کېدل هم یوه ښه نمونه ده ځکه د اوسني مالی بحران له امله ډیری امریکایان یا خو کور نشی اخیستلی او یا هم د کور د کرایی پیسی نه لری .
د یوی سروی له مخی یواځې د نیویارک په ښار کې اته زره اته سوه پنځوس کورنۍ داسې دی چې هغوی په حکومتي خیمو کې اوسیږی ، په یاده دی وی چې د دوه کالو راهیسی په زرگونو نوری کورنیو د حکومتي خیمو لپاره عریضی ورکړی دی او دا سلسله لا اوس هم ورانه ده چې دغه فیصدی د تیر کال په

پرتله یو پنځوس لوړه ده ، د دغه سروی کوونکي اخبار نمائنده د یوی څلور ویشت کلنی جلی کېرن ډیاز سره مرکه کړی وه او هغی ورته ویلی ول :

زما کورنۍ دلته دغه حکومتی خیمو ته د لسو ورځو په نیت راغلی وه او مونږ دا فکر کوه چې کېدای شی د لسو ورځو وروسته مونږ ته کوم مناسب کور پیدا او هلته د اوسیدلو لپآره لاړ شو مگر په ډیره خواشینی سره وایم چې دغه لس ورځې په میاشت بدلی شوی او کور راته را نه کړل شو ، کېرن ډیاز زیاته کړه : مونږ ته چې حکومت کوم ځایونه جوړ کړی دی دلته بوی او هره خوا کثافت دی ، زمونږ د اوسیدو دغه ځایونه دمره تنک دی چې ساه مو پکې ډوبیږی .

په داسې ځائی کې کور پیدا کول ډیره د خوش قسمتی خبره ده ځکه اوسمهال په نیویارک ښار کې بی روزگاری د لسو فیصدو ته لوړه شوی ده .

د نیویارک ښار د بی کوره خلکو د کمیسون مشر رابرت هیسن وائي:

د امریکا اوسنی مالی بحران زما د ژوند تر ټولو ترخه خاطره ده .

د ببروکلین ښار د بی کوره شوی خلکو د کمیسون همکار ډورین میلر وایی:

دلته داسې خلک هم شته چې د تیرو دریو کالو راهسی په دی خیمو کې اوسیږی ، خکه په ښار کې دوی ته د کور د پیدا کول ناشونی دی او که کوم کور پیدا هم شی نو د ا خلک بیا د هغی د کرایه ورکولو وس نه لری.

Daily dawn 2010 / 02 / 07

دا به ډیره پر ځای وی چې د تیر وخت ستر سلطنت انگلستان په زوال هم یو سر سری نظر وکړو تر څو د امریکا د زوال په پوهیدلو کې راسره مرسته وکړی:

مشهور انگلیسی اخبار نیوز ویک سر محرر فرید ذکریا لیکلی :

په نولسمه پیړی کې چې انگلستان د سوډان سره کوم خونړی جنگ کړی وه د هغی له امله انگلستان پنځه سوه میلیونه پونډه مصرف کړی ول ، که څه هم په نولسوه دوه میلادی کال کې د سوډان ازادی غوښتونکو د انگلستان د فوځ په مخ کې وسله و غورځوله خو که مونږ دغه جنگ ته په ژور ه او ډیر فکر وگورو نو

دا به راته څرګنده شی چې انګلستان دغه جنګ بایللی وه او سخته ماته یی خوړلی وه .

دا هغه وخت وه چې د نړی مشهورو مفکرینو او څیړونکو دا ویلی ول چې د ستر انګلستان زوال شروع شو .

په دغه جنګ کې د انګلستان پنځه څلویښت زره فوځیان وژل شوی ول او د انګلستان د دغه جنګ په اړه امریکا ، فرانسی او جرمنی ویلی ول چې د انګلستان د سوډان سره دغه جنګ غیر قانونی او غیر انسانی عمل دی .

د فرید ذکریا کتاب: د امریکا نه وروسته نړی ۱٦۰ او ۱٦۱ مخونه .

د بریطانیا د زوال په باره کې دا دلیل هم وړاندی کېږی چې :

اول او دویم نړیوال جنګونو انګلستان خپل اصلی جغرافیایی موقیعت ته را وګورځوه ، دا هم یو حقیقت دی چې نړیوال جنګونو انګلستان داسې قرضداره کړی وه لکه نن چې امریکا د جنګونو د مصاریفو له لاسه قرضداره دی ، فرید ذکریا لیکلی :

په اولنی نړیوال جنګ کې څلویښت بیلیونه ډالر مصرف شوی وه او انګلستان (چې په هغه وخت کې ) د دنیا تر ټولو ډیر قرض ورکونکې هیواد وه او وروسته بیا د دوی د قرض ۱۳٦ فیصده ته ورسیده ، د بریطانیا د حکومت د دغه قرض مطلب دا وه چې د نولس سوه شل په نیمائي کې د دغه قرضونو په ورکولو کې د حکومت نیمایی بودیجه خوړلی وه .

د انګلستان د مالی استحکام تابوت په دویمه نړیوال جکړه کې و وت ، بنیادی ټکې یی دا وه چې انګلستان د نړیوال ځواک څخه و غورځوي او د دی لامل د انګلستان سیاست نه بلکې مالی بحران وه .

حال دا چې په هغه وخت او اوسمهال هم همدا انګلستان د نړی په سیاست کې تر ډیره حده لاس لری، خو په هغه وخت کې د انګلستان مالی حالت ډیر زیات خراب وه .

د فرید ذکریا کتاب د امریکا نه وروسته نړی ۱٦٦ او ١٦٧ مخونه .
که د بریطانیا تیر حالت د ننی امریکا سره پرتله کړو نو دا به راته معلومه شی د دواړو ترمنځ هیڅ فرق نه لیدل کېږی .
که بریطانیا پرون د خپلو اعمالو له امله مخ پر ځمکه ولویده نو امریکا هم نن د خپلو اعمالو له امله مخ په غورځیدو ده او صرف یوی داسې ټیلی ته ضرورت لری چې وخوځیږی .
د نیوز وییک د سر محرر نظر .
فرید ذکریا د امریکا په زوال یو کتاب لیکلی چې د : پوسټ امریکن ورلد نومیږی، لیکوال په دغه کتاب کې ځای پر خای خپل نظر ښودلی هغه په خپل کتاب کې لیکلی:
اوس مهال د امریکا په مقابله کې چین ، روسیه ، هند، برازیل ، جنوبی افریقا او کېنیا غوندی ملکونو اقتصاد مخ په ښه کېدلو روان دی ، د نړی لوی لوی بلډنگونه، د ابو بندونه، د ډیرو روپو گټلو فلمونه، د مبائل او کمپیوټر کاروبار، د موټرو کارخانی، د بوټانو، کالیو او نوری نړیوال شرکتونه او حتی د ورځنی ژوند د استعمال شیان هم د امریکا څخه بیرون جوړیږی .
د دی نه دا ثابتیږی چې اوس امریکا د نړی ستر ځواک نه دی بلکې په نړی کې نور هیوادونه هم شته چې په دغه لوبه کې شامل دی او دا کار د امریکا د زورال لمړی پړاؤ دی .
د فرید ذکریا د کتاب د پوسټ امریکن ورلد کتاب ۸ مخ .
فرید ذکریا لیکې :
د نړی ډیر سیاسی او اقتصاد پوهان په دی نظر دی چې : نړیوال تجارت کې دغه نوی ننوتي هیوادونه لکه: چین، هند او داسې نورو ته په کتلو سره داسې ښکاری چې د امریکا په شمار څو ورځي پاتي دی ، د نړی په یوه هیواد کې هم دمره په تیزی سره مخ په ښکته روان حالت نه تر سترگو کېږی لکه څومره چې

د امریکا دی . ۴۸( د فرید ذکریا د کتاب ځلوېښتم مخ) .

فرید ذکریا د امریکا په حالات ډېره ښه تبصره کړی هغه لیکلی:

امریکا نور هیوادونه په خپل لاس نړیوال ځواک ته ورسول، خو د بده مرغه دا یی د یاده و وتله چې خپل ځان په نړیوال ځواک کې همداسې وساتی.

( د فرید ذکریا د کتاب ۴۹ مخ ).

د امریکا په باره کې د فرید ذکریا دا لاندی تبصری هم ډیری مهمی دی هغه لیکلی :

: د امریکا فوځ که هغه ځمکنی ، هوائي او یا هم بحری دی د هر اړخه کامیاب دی او د ۱۴ اروپائی هیوادونو په مقابل کې امریکا په خپل فوځ ډیر مصرف کوی . د هغه د کتاب ۱۴۹ مخ .

: په دوه زره پنځه کې د نشنل اکېډمی اف سائنس یوه څیړنه کړی وه چې په هغه کې راغلی ول:

امریکا به د سائنس په رشته کې د مشرتابه رول ډیر زر له لاسه ورکړی ، د هغه د کتاب ۱۷۴ مخ .

: نن ورځ هر څه د امریکا سره لوبی کوی او هغه تیر باسی ، ۱۸۷ مخ .

: نن ورځ د امریکا په حکومت کې د دی صلاحیت نشته چې مسائل وڅیړی او د هغی د حلولو لپاره کار وکړی ، ۱۹۰ مخ .

: د مالی بحران له امله بوش خپل خارجه سکرتر جیمز بیکر په دی مامور کړی وه چې افغانستان او عراق د جنگ لپاره د نړی څخه چنده او په عامه اصطلاح قلنگ را ټول کړی چې بعضی عربي ملکونو په دیر سخاوت په کې برخه واخیسته . ۲۰۳ مخ .

: د پرون په پرتله بعضی اروپایی هیوادونه د امریکا د بیرونی پالیسی سره ډیر مخالفت کوی ، ۲۰۹ مخ .

: امریک په داسې یوه حال کې چې هغه نور په نړی خپل حاکمیت نشی ساتلی

ایا نور ګلان کرلی شی ، فرید ذکریا د خپل کتاب په اخرنی پاڼو کې لیکلی :
ددنیا هیڅ وخت تر څو لسیزو یو طرفه نه پاتی کېږی او د وخت په تیریدو یو نوی ځواک او طاقت رامنځ ته کېږی چې دا یو فطری عمل دی ، امریکا چې وایی یو څه او کوی بل څه او دا کار صرف منافق خلک کوی ، د امریکا همدغه منافقت د امریکا د قوی ځواک پاتی کېدلو لپاره ډیر زیات ضر رسوی ، امریکا پّه خپل لاس ځان ته داسې حالات جوړوی چې د دغه حالاتو له امله امریکا په خپله خان ته اقتصادی مشکلات زیاتوی.
فرید ذکریا د امریکا حکومت ته نصیت کوی او لیکې:
امریکا باید په خپل فکر او تګلاره کې پراخوالی پیدا کړی او د زور د بی ځایه استعمال څخه باید زیات ځان وساتی ځکه د امریکا د دغه کار په کولو سره د هغه مخالفین نور هم زیاتیږی،
نن ورځ چې امریکا ته کوم نړیوال مشکلات پیښ دی نو دغو مشکلاتو او حالاتو دا غوښتنه ده چې امریکا دی د ښمنانو د زیاتولو پر خایی خپل ملګری ډیر کړی که څه هم نن د امریکا د دوستانو په مقابل کې د هغه دښمنان ډیر دی او د امریکا دښمنان او مخالفین ډیر نزدی دی چې د امریکا ځوله ماته کړی ، د امریکا دغه مخالفین او دښمنان د یوه داسې نړی په باره کې سوچ او هلی ځلی کوی چې په هغه نړی کې د امریکا هیڅ کردار او نوم نه وی یعنی دنیا د امریکا د نه بغیر ارامه او سوکاله غواړی .
د فرید ذکریا کتاب: (دَ پوسټ امریکن ورلډ) اخرنی پاڼې
د یوه تازه خبر له مخی د روس یو مشهور څیړونکې د امریکا د ټوټه کېدلو خبر هم ورکړی چې هغه وخت را نزدی دی چې امریکا په شپږو هیوادونو تقسیم شی .
د روس مشهور سیاست پوه او سفارت کار ( ایګو نیارین) وایی :
د امریکا د اوسنی مالی بحران له امله د امریکا مستحکم او یو موټی پاتې

کېدل نا ممکنه ده او په نړیوال بازار کې امریکا په اول سر کې پاتې کېدل اوس ناشونی شوی ده، هغه ویلی :

هغه د امریکا زوال نه غواړی خو د امریکا نړیوال سیاست ، اقتصادی او تولنیز حالاتو ته په ژور فکر او نظر وګورو نو دا ترینه ثابتیږی چې : په را روانو وختونو کې به د دغه هیواد د سیاست، بیرونی بالیسیو او نړیوالو حالاتو له امله به امریکا په شپږو ازادو هیوادونو باندی وویشل شی.

د کېلی فورنیا ولایت به د کلیفورنیا په جمهوریت بدل شی او دا به تر څه حده د چین د دولت تر اثر لاندی وی .

د ټیکساس ولایت به د ټیکساس جمهوریت شی او دا به د مکسیکو تر اثر لاندی وی .

واشنګتن ډی سی او نیویارک اټلانټک به د امریکا برخه وی او داسې هم کېدای شی چې د اروپائی اتحادیی سره یو ځای شی .

د سنټرل نارته امریکا برخه به د کاناډا سره یو خای شی .

د الاسکا ولایت به د روس د واک لاندی وی ځکه دا مخکې هم د روس د واک لاندی پاتی شوی وه .

۲۰۰۹ / ۰۳ / ۰۵ .

**د مشهور تاریخ پوه پال کېنیدی نظر :**

د هر قوم ملت او هیواد په باره کې د تولو مؤرخین په دی خبره همغږی دی چې کله دغه قومونه یو ستر نړیوال خواک شی او خپل حکومتونه تر ډیره لری پوری پراخ کړی نو بیا د دوی زوال په خپله شروع کیږی او هغوی د نړیوال ځواک څخه کلار په کلار غورځیږی ، چې ښه مثالونه یی د ایران ، روم ، یونان، فرانسی، انګلستان اورس دی او نن دی که سبا دی همدا حال د امریکا دی.

کې چې په ۱۹۸۹ کې چاپ شوی وه لیکلی : Rise and fall of the great powersپال کېنیډي په خپل کتاب :

په واشنګټن کې ناست د امریکا پالیسی جوړونکې باید په دی پوه شی چې د امریکا( په نړی کې ) ګټې د دوی د ساتنی څخه څو چنده زیاتی شوی دی ، د هغه د کتاب ۵۱۵ مخ

پال کېنیډی لیکې :

که څه هم دا ډیره لری خبره ده چې څوک په امریکا حمله وکړی مګر امریکا چې په نړی کې د خان لپاره کوم ګټې لټوی د هغه نه په مساوی توګه دفاع کول د امریکا لپاره تر ټولو مشکل کار دی .

د مراکش (مغرب) نه نیولی تر افغانستان پوری چې څومره مسلمان هیوادونه دی د دوی اړوند د امریکا د مسائلو لست دمره اوږد دی چې که یو انسان یی و وینی نو د ساه اخیستلو نه به قاصره شی .

په عربی نړی کې د امریکا په ضد نفرت دمره ډیر دی چې دهغی له امله اوس د امریکا لپاره د یوه اوږد مهاله او هم اهنګه پالیسی جوړول ډیر مشکل ښکاری هغه لیکې :

که چېرته په نړی کې یو ډارونکې مالی بحران پیدا شی نو د هغی له امله به امریکایی بنکونه ډیر زیاته او نه هیریدونکې ضربه و وینی او هغه ځایونه چې دغه دارونکې مالی بحران په کې پیدا کېدونکې دی نو هغه همدا د مراکش نه نیولی تر افغانستان پوری علاقه ده ، د امریکا د فوځ د پنځوسو نه نیولی تر شپیتو فیصدو بودیجه د ناټو په ځواکونو مصرفیږی ، په ناټو کې شریک ملکونه په خپله ډیره کمه بودیجه مصرفوی .

د پال کېنیډي په نزد نن ورځ امریکا د تیرو وختونو په څیر دمره وس نلری چې د نړی له نورو ملکونو سره د فوځ په برخه کې هغومره کومک وکړی ، امریکا په نولس سوه پنځه څلویښت او د هغی نه لږ وخت وروسته یو نړیوال صنعتی

ځواک وه ، دامریکا زراعت هم ښه وه او د حکومت بودیجه هم برابره وه ، مخکې د امریکا جی این پی دمره کمه نه وه لکه نن چې ده ، ۵۵ پاڼه.

پال کېنيډي دغه کتاب په ۱۸۸۹ کې چاپ شوی او ویلی یی وه :

که چېرته په نړیواله کچه د قرضونو بحران پیدا شو او د هغی له امله بانکونه په خساره کې شول نو تر ټولو ډیره خساره به د دغه بحران له امله د امریکا مالی بحران وی .

په شرق کې د نړی د ابادی یو ډیره لویه برخه پرته ده چې د دغه ځای حکومتونه ډیر تجارت د امریکا سره کوی په همدغه شرق کې د راتلونکې دوه قوی حکومتونه چین او جاپان شتون لری ، چې په دغه دواړو ملکونو کې صنعت مخ په تیزی روان دی او ددغه له امله به د امریکا صنعت ډیره سخته ضربه و وینی .

د پال کېنيډي د کتاب رائز اینډ فال اف دی گریټ پاورز ۵۱۶ مخ .

**چین او امریکا :**

د بریطانیا مشهور فائنانشل ټائمز په دوه زره نهه کې د چین او امریکا تر منځ د فرق په نوم یوه لیکنه خبره کړی وه چې د هغی لیکنی مهم ټکې دا دی :

۱ : چین په هره برخه کې پر له پسی زیاتوالی شروع کړی او په امریکا او اروپا کې سرمایه کاری کوی خو بله خوا امریکا د نړی په هر ځای کې خپل فوځونه ځای په ځای کوی چې له دی امله امریکا ته دغه کار ډیر په قیمت تمامیږی .

۲ : چین داسې یو تیز رفتار ریل گاډی جوړ کړی چې په دریو ساعتونو کې یولس سوه کېلو متره فاصله وهی او د امریکا امټریک ایکپریس ریل گاډي د نیو یارک څخه تر بوسټنه پوری دری سوه کېلو متره لارپه دری نیم ساعتونو کې وهی .

۳ : د چین حکومت به په نزدی وخت کې د ریل داسې یوه پټلی جوړه کړی چې

اتلس زره کېلومتره به اوږده وی چې په همدومره موده کې به امریکا په افغانستان او عراق کې په جنګونو او فوځي اکمالاتو په وړلو او راوړلو کې د چین نه څو چنده زیات مصرف وکړی .

۴ : د چین حکومت غواړی د خپل هیواد هر کلی او کوڅې ته موټر او ریل ګاډي و رسوی تر څو د خپلو صادراتو دائره نوره هم وسیعه او پراخه کړی خو امریکا د اسلام سره په دښمنی کې په ښه او بهتره تړوګه د معاملی کولو سوچونه کوی او د هغوی لپاره د یو خاص پلان په جوړلو لګیادی .

۵ : امریکا د نړی ټولو مسلمانانو سره د اړیکو ټینګولو څخه بی زاره دی او صرف د اسرئیل خبره اوری حال دا چې چین د اسرائیلو سره دمره خاصه اړیکې نشته .

٦ : امریکا د یولسم ستمبر نه وروسته په پیدا شوو حالاتو ته په نظر د خپل هیواد داخلی امنیت باندی ٦٠ بیلیونه ډالر مصرف کړی خو چین د روسی سره یوه معاهده لاسلیک کړی چې هغه د پنځه ویشت بیلیونو ډالرو ده .

۷ : امریکا خپل وسائل د افغانستان او عراق د جنګونو په بټیو کې سوځوی حال دا چې چین د نورو ملکونو سره د معدنیاتو تړونونه لاسیک کوی او خپل ځان مستحکموی .

۸ : د پترولو نه ډک هیوادونو کې د چین سرمایه ګذاری ورځ په ورځ مخ په زیاتیدو ده، چین چې کومو افغانانو ته پلاستکې لوښي ور لیږی په هغو غریبانو بیا امریکا د وحشت نه ډکه بمباری کوی .

۹ : چین چې د کوم هیواد سره تجارتی تړون لاسلیک کړی نو بیا په هغه هیواد کې د پرمختګ کارونه هم کوی ، چین هلته سرکونه ، پلونه او داسې نور د ضرورت شیان جوړوی چې ښه او ژوندی مثال یی بعض افریقایی هیوادونه دی

۱۰ : چین د نړی په یوه هیواد کې جنګ ته لمن نه ده وهلی ، چین کله هم د وسلی تجارت ته وده نه ده ورکړی ، چین هیڅ وخت داسې پالیسی نه ده خپله

کړی چې په کوم هیواد حمله وکړی او یا هغه کمزوری کړی .

۱۱ : چین هر وخت د دی په لټه کې دی چې خپل پیریدونکي زیات کړی او امریکا بیا هر وخت د خپلو دښمنانو د زیاتولو کوښښ کوی ، نن ورځ امریکا په قرضونو کې داسې دوبه ده چې د قرضونو د دغه سمندر څخه وتل ورته اوس ډیر ناشونی ده .

۱۲ : چین د ایران، وینزویلا ، برازیل ، ارجنټاین، چیلی ، پیرو او بولیویا سره د بیلیونو ډالرو تجارتی تړونونه لاسیک کوی خو له بل پلوه امریکا د کولمبیا سره د شپږو بیلیونو ډالرو داسې یو تړون لاسلیک کړی چې د هغی له امله به په کولمبیا کې اوه فوځي اډې جوړوی تر څو د دی په ذریعه  وینزویلا وډاروی، همداسې امریکا په هندو راس کې د فوځي بغاوت څخه ملاتړ کړی او د ایران سره د وینزویلا، برازیل او بولیویا د تجارتی تړونونو په لاسلیک کولو  سخت خفګان ښودلی .

۱۳ : چین د لاطینی امریکا د هیوادونو سره خپل تجارتی تړونونه زیاتوی او د دغه ځای تر اتیا فیصده خایونو ته یی ځان رسولی ، خو له بلی خوا د امریکا متحده ایالات د لاطینی امریکا د یوه ناکام او په نړیوال کچه د مخدره موادو قاچاق کونکې هیواد سره خپلی اړیکې نور هم قوی کول غواړی .

د دی نه دا ښه په ډاګه کیږی چې په جنوبی امریکا کې د چین او امریکا د پالیسیو ترمنځ څومره توپیر دی .

فنانشنل ټائمز په خپلو اخری کرښو کې لیکلی :

امریکا ته پکار دی چې په خپله بیرونی پالیسی باندی نظر وکړی ، امریکا باید ټولی فوځي اډی بندی کړی او د مزدورو او غریبو  هیوادونو د استعمار څخه لاس واخلی ، امریکا باید د نورو هیوادنو د مسائلو پر ځای باید د خپل هیواد په داخلي مسائلو فکر وکړی او دهغی د مخ نیوی لپاره باید هلي ځلی کړی .

فنانشنل ټائمز ۲۰۰۹  د دسمبر ۲۹ بریطانیا .

## د اسلام له نظره :

د هر قوم د عروج او زوال لپاره دا اصول دی چې هغه کله ډیر لوی ځواک شی نو بیا د بعضو اسبابو له امله بیرته د زوال په لور روان شی الله عزوجل فرمایلی :
( و وایه ای محمده ! ای الله ، ای مالکه دسلطنت (ای واکداره د باچاهی) ته سلطنت هغه چاته ورکوی چې ته چاته اراده وکړی او بیرته د هغه چا نه سلطنت اخلی چې ته یی د هغه څخه د اخیستلو اراده وکړی او هره هغه چاته عزت ورکوی چې ته چاته اراده وکړی او هر هغه ځوک ذلیلوی چې ته یی د ذلالت اراده وکړی . د ال عمران سورت ۲٦ ایت .
الله عزوجل په قران کریم کې ښکار ویلی :
د هر امت (قوم) یوه نیټه ټاکل شوی (د مرگ یو یا هم په هغوی د عذاب د راتللو) څه وخت چې د دوی نیټه راشی نو هغوی بیا نه خو یو ساعت وروسته کېدلی شی او نه هم یو ساعت مخکې کېدلی . الاعراف ۳۴ .
الله عزوجل بل ځاي فرمایلي :
(او دا ورځي (د ژوندون) مونږه د خلکو په منځ کې اړو را اړوو) ال عمران ۳۹ .

## د ابن خلدون نظر :

مشهور مؤرخ او د تاریخ د فلسفی بنیاد ایښودنکي علامه ابن خلدون د قومونو د عروج او زوال په باره کې په خپل کتاب کې ډیر ښائسته بحث کړی هغه لیکلی:
کله چې الله عزوجل د کوم قوم د نابودلو او زوال اراده وکړی نو د دغه قوم خلک بیا په ناوړه او خراپو اخلاقو گرفتاره کړی چې د دغو خراپو اخلاقو او عادتونو له امله د سیاسی پرمختگ نه محرومه شی او څه وخت چې په یوه قوم کې سیاسی بصیرت نه وی نو هغه قوم بیا خپله زوال ته لاره برابوی او د دوی

ځای بیا یو بل قوم نیسی ، دا د دی لپاره تر څو خلک په دی پوه شی چې د یوه قوم او کورنی زوال د هغو د خپلو اعمالو نتیجه ده ، الله عزوجل چې دوی ته کوم عزت او قوت ورکړی وه هغه یی ترینه د هغوی د بدو اعمالو له امله بیرته واخیسته. (مقدمة ابن خلدون اول جلد)

**د علامة شکیب ارسلان نظر:**

د اسلامی نړی ستر مجاهد او تکړه عالم علامة شکیب ارسلان په خپل کتاب : ( د اسلامی امت د زوال اسباب) کې داسې لیکلی :

د روم ستر سلطنت د روم د خلکو د بی حیایی ، بد اخلاقی ، بد معاشی ، بی همتی او داسې نورو گناهونو کولو له امله زوال ولیده ، علام شکیب ارسلان د ابن خلدون دا خبره نقل کړی چې :

د روم سلطنت خپل وخت تیر کړی او کمزوری شوی وه او له همدی امله دغه سلطنت زوال ومومه .

علامة ابن خلدون لیکلی :

که د تیرو قومونو او پاچاہانو په حالاتو څیړنه وکړو نو د هغوی د زوال همدا اسباب وه کوم چې مونږ بیان کړه .

مقدمة ابن خلدون ، اول جلد ۱۲۱ مخ .

مشهور غربی مؤرخ ایډورډ گبن په خپل کتاب(ډیگلائن اینډ فال اف دی رومن امپائر) کې د روم د سلطنت د زوال په باره کې چې کوم لاملونه بیان کړی هغه دا دی :

بد کرداره، بد عمله، بی لاری، مذهبی تعصب، او نه خلاصیدونکې جنگونو د روم سلطنت تباه او د ځمکې سره برابر کړ .

دلته به دا بی ځایه نه وی چې د نړی د مشهورو نهو کسانو هغه ویناوی چې د زووال په باره کې یی کړی را نقل کړو .

١ : کله چې الله عزوجل د کوم قوم او هيواد د زوال اراده وکړی نو په هغه قوم او ملک کې بيا خراپ عادتونه او اخلاق پيدا کړی چې د دغه عادتونو او اخلاقو له امله دغه قوم له سياسی بصيرت نه محرومه شی .

د علامة ابن خلدون کتاب مقدمة تاريخ ، اول جلد ١٢١ مخ .

٢ : الله عز وجل اصلاح خوښوی او د بی لاری توب نه بيزاره دی او هر وخت چې معامله د دی سرچپه شی يعنی خلک بی لاری شی او د اصلاح نه مخ واړوی نو په دغه وخت کې بيا الله عزوجل دوی په ډيرو وړو ، وړو شيانو او کارونو د زوال سره مخ کړی او د دوی پر ځای يو بل قوم او ملت چې د دوی نه لږ څه بهتره وی حاکم کړی .

علامة سيد ابوالاعلی مودودی رحمة الله عليه کتاب بناؤ اور بگاړ .

٣ : د هسپانيې په مسلمانانو کې چې ترڅو ښه عادتونه او اخلاق ول ترهغي پوری د اروپا ستر، ستر پاچاهان د دوی په مخکې په ګونډو ول خو کله چې دوی د ښو اخلاقو اوعادتونو څخه خلاص شول نو بيا ددوی هغه حال شو کوم چې مونږ ته اوس د تاريخ په کتابونو کې راپاتې.

علامة شکيب ارسلان رحمه الله کتاب اسباب زوال امت .٣٩ او ٤٠ مخ

٤ : يوه قوم هم داسې نشته چې هغه ټول ښه وی که چېرته دوی ښه والی لری نو لږ څه بد والی هم په کې وی او تر کومه چې په دوی کې ښه والی ډير وی نو د دوی بد بيا پکې نه ښکاری او هغه پټ وی ، کله چې د دوی بد ډير شی نو د دی له امله د دوی ښه اعمال بيخی ورک شی او بيا په دغه وخت کې د دوی زوال شروع شی .

د هند مشهور څيړونکې او ليکوال مولانا صباح عبدالرحمن کتاب ، مسلمانو کې عروج اور زوال کې اسباب .

٥ : امريکا په ګناهونو کې داسې راګيره ده چې د دغه ګناهونو له امله به الله عزوجل دوی ته ډير سخت او درد ناک عذاب ورکړی .

مشهور امریکایی فادری ډیوډ ویلکر .

٦ : دنیا تر څو لسیزو یو طرفه نه پاتی کېږی او نه هم یو طرفه پاتی کېدلی شی او څه موده وروسته یونوی ځواک را پیدا کېږی چې هغه بیا په نړی حاکمه وی.

فرید ذکریا د نیوز ویک سر محرر

۷ : د امریکا ډیر لویی او نړیوال شرکتونه صرف د دولسو میاشتو په موده کې د تیرو ۲۵ کالو سرمایه له لاسه ورکړی چې اوسمهال دغه شرکتونه یا په ورکېدو دی او یا هم د خرڅلاړ لپاره تیاری .

د روسیی رئیس جمهور پوتین

۷ : د امریکا د مسائلو لست دمره اوږد دی چې که یو انسان دغه لست ته په ځیر غور وکړی نو د ساه اخیستلو نه به قاصره شی .

پال کېنیډي د رائز اینډ فال اف دی ګریټ پاور کتاب .

د ابادی تر ډیره حده کمښت د اروپا او امریکا لپاره اوس د بقاء تر ټولو لویه مسئله ده

پیټرک جی بګانن د امریکا د اولسمشر سلاکار .

نړیوال اقتصادی بحران او د هغی له امله پیدا شیو مالی مشکلات اوس د اور پهمانند د امریکا لپاره یوه لویه ستونزه ده .

ډینئس بلئیر د امریکا د استخباراتو رئیس .

کومی کرښی چې مونږ پورته ولوستلی د دی د لوستلو نه وروسته به داسې هم څوک وی چې و وایی چې نن ورځ په امریکا کې د غه یادی شوی ستونزی نه دی موجودی، بد اخلاقی، تپل شوی جنګونه، اقتصادی مشکلات ، او د کورني او ټولنیز مشکلاتو یو اوږد او نه خلاصیدونکې لست ، نسلی تعصب او داسې نور په لسهاؤ شیان چې د ا تول د نړی د بل هیواد په پرتله په امریکا کې تر ټولو زیات لیدل کېږی .

**آخری خبره :**

د پورته ذکر شویو خبرونو څیړونو او تبصرو نه دا په ډاګه کېږی چې نن دی که سبا دی امریکا به هرو مرو خپل نړیوال حاکمیت له لاسه ورکوی . که څه هم دا نشو ویلی چې په را روانو شپږو یا اتو کلونو کې به امریکا د زوال سره مخ شی ځکه د یوه قوی مستحکم هیواد هم د پنځه لسو نه تر شلو کالو پوری موده نیسی .

غربی لیکوال وینډی ډابسن په دی باره کې وائی :

که څه هم د دوی ټولو شیانو بغیر د هغو ملکونو چې د امریکا زوال او تباه کېدل غوښتونکې دی بیا هم دغه هیوادونه د امریکا محتاجه دی ، نړیوال مالی نظام لا تر اوسه د غرب جوړ شوی اصولو روان دی ، کله چې په نړیوال مالی نظام کې د اسیائي ملکونو تسلط پیدا او د هغوی په لاسونو کې وغورځیده بیا به په هماغه ورځ د نړی تر ټولو زورور ځواک د اسیا حخه وی .

www:theglobalest.com/windy/letter/03325. د وینډي ډابسن نوره لیکنه دلته لوستلی شی

مونږه چې په دی کتابګوټی کې د امریکا د زوال په باره کې کوم اوه سبوبونه یاد کړی دی هغه هر یو سبب په خپل خایی کولی شی چې یوه قوم ، ملت او هیواد د زوال سره لاس او ګریوان کړی خو نن ورځ په امریکا کې دا اوه واړه اسباب په ګډه او یو ځایی کار کوی .

هغه خلک چې د اګومان کوی چې د امریکا زوال یوه لری خبره ده او دا د خندا وړ بولی هغوی نه دی ملامت ځکه غربی دروغجنی میډیا د هغوی په ذهن کې دا ټومبلی ده چې امریکا څه وایی هغه صحیح او نور ټول دروغ دی .

هغه خلک چې د امریکا زوال د عقل او منطق نه لری ګڼي نو هغوی نه دی ملامت خکه هغوی د عقل او پوهی یتیمان دی ، هغه بیچاره نه علم لری او نه منطق که چېرته هغوی علم درلودلی نو بیا به په دی پوه ول چې د هر شی د

عروج پسی زوال وی .

دغه خلک دی د ستر یونان، روم، ایران، برطانیا، او روس تاریخونه مطالعه کړی .

دا ربښتیا ده چې د اسلامی ملکونو په بی ثباته کولو کې نړیوالی شبکې کار کوی او هلته خپل خلک لری خو امریکا په خپل لاس او د داخل نه د زوال په لور روانه ده .

د حیرانی وړ خبره دا ده چې څرنگه د اسلامی هیوادونو مشران د خپلو هیوادونو د راتلونکې نه نا خبره او بی فکره دی همداسې د امریکا یان هم د خپل هیواد او ځان د راتلونکې څخه بی پروا دی .

که امریکا نن په دی مشغوله ده چې د اسلامی هیوادونو د تقسیمدو نقشی خپروی نو هغه ورځ لری نه ده چې د تقسیم شوی امریکا نقشی هم د نړی په بازارونو کې د خرڅلاؤ لپاره کېښودل شی .

کل من علیها فان، ویبقی وجه ربک ذوالجلال والاکرام .

## اوله (۱) ضمیمه:

په غرب کې د مسلمانانو زیاتوالی:

غرب د فطرت سره په دی جنگ کې چې د ماشومانو د نه پیدا کولو  په اړه یی شروع کړی وه اوس وخت داسې راگیره شوی ده چې حیران دی څه وکړی .

که چېرته مسلمانان د تیر په رنگ یو ځل بیا د علم او هنر میدان ته مخه کړی او د نني وخت د حالاتو مطابف څیړنی وکړی نو هغه حه چې غربی مفکرین یی لږ لری وینی نو هغه به مسلمانان ډیر نزدی او زر و وینی ، په اوسنی وخت کې دا ویل کېږی چې ټول غرب د دعوت خای دی که چېرته مونږ د ۵۰ اسلامی ملکونو خبره په خپل ځای پریدو او صرف د لسو او پنځه لسو هیوادونو خبره وکړو چې دغه هیوادونه په رښتیا سره یو سم اسلامی شرعي خکومتونه وی نو د دغه شرعی قاونون د مینی ، سوکالي او سکون نه ډک ژوند به په نورو دمره اثر وکړی چې په ځنگل کې چې اور ولگیږی .

په عیسایی هیوادونو کې په ابادی کې دمر کمښت راغلی او روان دی چې په خپله د دغه هیوادونو حکومتونه حیران دی چې حه وکړی ډیر غربي مفکرین او شنونکې په غرب کې د ابادی د کموالی پهباره کې فکرمند دی او هغوی په دی برخه کې ډیره څیړنه هم کړی او لا تر اوسه یی کوی چې د هغی له جملی څخه دا یو حو د مثال په ډول له تاسو سره شریکوو :

: د بریطانیا ډیر پوهان په دغه هیواد کې د ماشومانو د نه پیدا کېلو لپاره سخت خفه دی ځکه هلته پّ حکومتی ادارو کې هغوی ته د داسې کسانو پیدا کول ډیر ستنزمن دی چې هغوی ته مطلوب وی .

د ایکسپریس ورځپاڼه ۲۰۰٦ / د حنور ۵۲ .

: د را روانو دری لسیزو ( یعنی ۲۰۳۰) پوری به په جاپان ، امریکا او اروپا کې د ماشومانو تره ، ماما،او خاله نه بی برخی وی بلکې د دوی خپلوان به بابا، نیا، او غور نیکه وی ځکه هلته د ماشومانو د پیدائښت سویه تر ډیره حده کمه شوی

ده . ( معارف اسلامی ۲۰۰۱/د مئ ۱٦ ).

: د جاپان تولنه یوه داسې ټولنه ده چې هلته ماشومان د نشت سره برابر دی ، د جاپان د ښځو ټولنه وائی چې جاپانی تولنه عموما د ماشومانو پیدائښت نه خوښوی . ( نوائي وقت ۲۰۰٦ د دسمبر ۵ ) .

: په جاپان کې د ماشومانو د پیدائښت فیصدی یو اساریه دری پنځوس ده ، که دا فیصدی همداسې روانه وی نو په دوه زره دری سوه پوری به د جاپانی قوم د دنیا څخه نیست او نابوده شی .

د ټائم میګزین ۲۰۰٦ د جنور میاشت .

: نن ورځ په روس کې د ماشومانو د پیدائښت فیصدی یو اعشاریه صفر دری ده چې دا فیصد په نولس سوه اتیا کې دوه اعشاریه دری وه .

( نیوز ویک ۲۰۰٦ د نومبر ۴ ) .

: په فرانسی کې د ماشوم د پیدا کولو اوسنی فیصدی یو اعشاریه نهه ده حال دا چې د فرانسی د ابادی د ډیروالی په خاطر هره ښځه باید ری ماشومان وزیږوی .

( د ټائم میګزین ۲۰۰۵ ستمبر ۱۱ ) .

: د فرانسی حکومت هغه ښځو ته چې ډیر اولادونه زیږوی د ښو او ډیرو مراعاتو اعلان کړی ځکه اوس وخت په فرانسه کې د ماشومانو د پیدائښت فیصدی هلته د مړینی له فیصدی څخه هم ډیره کمه ده .

د ایکپریس او اسلام ورځپاڼه ۲۰۰۵ د ستمبر ۲۵ .

: په استرالیا کې حکومت هغه انجونو ته چې په کم عمری کې اولادونه زیږوی د ډیرو مراعتو اعلان کړی ، د استرالیا حکومت هری ښځي ته د یوه ماشوم په زیږولو دوه زره او سل استرالیای ډالر ورکوی او اوس د استرالیا د حکومت د نوی اعلان سره په هر ماشوم دری زره پنځه سوه ډالر ورکوی .

د نوائي وقت ورځپاڼه ۲۰۰٦ د جون دیرشمه .

:تر دوه زره پنځوس میلادیز پوری به د دنیا هر دریم سړی بودا وی او په جاپان، استرالیا، نیوزی لینډ او بعضی اروپائي ملکونه او جنوبی امریکا کې به تر دوه زره پنځوس پوری هر کال لس لکه خلک کمیږی او تر دوه زره پنځوس پوری به جاپان کې اتیا فیصده بوډاګان وی.

په ۲۰۰۵ کې د ملګری ملتونو د نفوسو د احوالو په اړه حوړ شوی راپور .

: د چین په ګوانګ ډونګ ولایت کې د چین حکومت د یو اولاد ښخه د زیاتو ماشومانو د درلودلو په جرم د سر غړونی په تور د هغه ځایی د ښځو شل زره حمله غورځولی ، دچین حکومت د یوه اولاد د قانون د پالیسی له امله هلته انجونی وژل کېږی ، داسې اندازه کېږی چې تر دوه زره شلو پوری به دری سوه لکه چینائي ځوانان ځانو ته د واده ښځي پیدا نشی کړی .

جسارت ۲۰۰۷ د جون میاشت ، نوائي وقت ۲۰۰۱ د اګست ۹ .

په ابادی کې د کمښت که د یوی خوا د هغوی لپاره د دی مشکلات زیږوی چې د لپاره به ځوانان ونلری او له بلی خوا د اهمیت وړ خبره دا ده چې هلته د عیسویانو فیصدی کمیږی او د دوی په مقابل کې د مسلمانانو نفوس مخ ّپه زیاتیدو دی ځکه په امریکا او اروپا کې اکثره مسلمانان دری یا حلور بچې لری .او نور ډیر مسلمانان دغه هیودونو ته د کار د پیدا کولو په لټه کې دغه هیوادونو ته ځي چې د دغه ورتلونکو په تګ د مسلمانانو تعداد ورځ په ورځ زیاتیږی .

اروپایی ملکونو ته د مسلمانانو ورتګ د اروپا حکومتونه بندیز نشی لګولی ځکه هغوی ته د داسې حلکو ضرورت دی جی د دوی پّ زراعت او صناعت کې کار وکړی او خپل هیوادونه پر مخ بوځي .

د اروپا د سیاسی چارو کار پوهان ، څیړونکې او نور لوړ چارواکې دا چغی وهی که چېرته د ابادی دغه فیصدی دغسی روانه وی نو دوی به په خپلو ملکونو کې لکه د اقلیت وی .

: مشهوره ایتالوی ښځینه ژورنالسته اوریانا فلاسمی د دغه په باره کې وائي : په را روانو شلو کلونو کې به نیمائي اروپائي ښارونه د دیرشو نه نیولی تر څلویښت فیصده مسلمانان شی او دغه ځائي به له دی امله د اسلام یو قوی مرکز وګرځي ، هغه وائي د دی لوی لامل د مسلمانانو د آبادی ډیریدل او د اروپایانو مسلمانیدل دی .

د ډان ورځپاڼه ۲۰۰۵ د مارچ ۱۳ .

: په فرانسه کې پنځوس لکه مسلمانان اوسیږی او د دی مطلب دا دی چې په ټوله اروپا کې د مسلمانانو دغه نعداد د نورو ملکونو په پرتله ډیر دی ، په جرمنی کې پنځه ډیرش لکه مسلمانان اوسی چې پّ را روانو لسیزو کې به د اروپا په ډیرو ښارونو کې د مسلمانانو اکثریت وی .

(د نوائي وقت ورځپاڼه ۲۰۰۵ د جون ۱۹ ) .

که چېرته په اروپا کې د اسلام د خپریدو همدا حال وی نو په را روانو پنځه ویشتو کالو کې به هلته د مسلمانانو تعداد د شپیته لکو څخه زیات شی، په اروپا کې د ترکیې د شمولیت څخه د انکار کولو یو لامل دا هم دی چې هلته د مسلمانانو تعداد زیات دی چې د ترکیې پّ شمول به په اروپا کې د نسلمانانو تعداد د غیسویانو څخه ډیر شی . جنګ۲۰۰۷ د فروری۱٦ .

: د بریطانیا د پالیسی جوړونکې اداری (کرچین) د یوه سوری له مخی د دوه زره دوه ویشت پوری به په بریطانیا کې څلور زره چرچونه ( کلیسا) بند شی.

( د جنګ ورځپاڼه ۲۰۰۷ د مارچ۱۵ )

: مشهور مستشرق برنارډ لیوس داسې ویلی: د یو ویشتمی پیړی تر اخره یعنی دوه زره نوی به ډیر عیسویان مسلمانان وی .

( نوائي وقت ورځپاڼه ۲۰۰۵ جون ۱۹ )

غربی میډیا او حکومتونو چې د مسلماناو پسی د تروریزم او سخت دریځي کوم پروپاګند او نړیوال جنګ شورع شوی هغه جنګ چې د مسلمانانو لپاره ډیر مضر

وه او د دغه جنګ له امله افغانستان او عراق چې حومره وځپل او وران شو ، هلته چې څومره ماشومان او عام وګړي شهیدان شول کېدای شي ساری یې نه وی خو دغه جنګ یو بل اړخ هم شته چې هغی ته خپل غربیان هم ګوته په غاښ دی او هغه دا چې هلته میشت خلکو د اسلام مطالعه شروع کړه او د دغه له امله ورځ په ورځ د هغه خلکو تعداد چې پّ اروپا او امریکا کې مسلمانیږی زیاتیږی .

: په امریکا کې د نهم او یولسم ستمبر د واقعی څخه وروسته عیسویانو د قران کریم مطالعه د مخکې په پرتله ډیره کړی ده . ( نوائي وقت ۲۰۰۵ د جون ۴ ).

: یواځی په فرانسه کې د جوماتونو شمیر تر څلورو زرو څخه ډیر دی ، د اسلام ارګائو د څېنیز مرکز دا راپور له مخی تر دوه زره شبږ حلوینبت پوری به د جرمنی اکثریت د مسلمانانو وی .

دبریطانیا د ګلاسګو پوهنتون د مذهبی مطالعی د فاکولتی پروفیسر نګول بورک ویلی :

زه یواځي د ګلاسګو د منطقی دولس سوه داسې اوسیدونکي پیژنم چې هغوی اسلام قبول کړی .

: په اروپا کې ځوانان د اسلام د مطالعی سره ډیر شوق لری له دی امله ډیر اروپایي ملکونه په هغه ځای کې د اسلامي انقلاب څخه ویره کوی .

: یواځي په بریطانیا او فرانسه کې د لسو کلونو په موده کې د یو لک څخه ډیر کسان مسلمان شوی چې پّ دوی کې مشهور دینی عالمان ، سیاست پوهان او د بدلو ویونکې دی .

د انګلیسی ورځپاڼي دا خبر په ۲۰۰۵ کې د جون د میاشتی په ۴ د فرانسی د ملی اخبار څخه را اخیتس دی .

: اوسمهال په امریکا کې پنځه لس میلیونه مسلمانان دی چې هر کال شل زرو څخه ډیر لاطینی امریکایان په اسلام مشرف کېږی .

: په استرالیا کې د خلکو د مسلمانیدو هم همدا حال دی یوه نوی مسلمانه شوی استرالیایی انجلی چې عائشه نومیږی وایی: دلته به تاسو هر هفته د استرالیا یانو د مسلمانیدو خبر واوری ، هغی و ویل :په استرالیا کې د نوی مسلمانیدونکو کسان کې د استرالیا د ښځو تعداد اتیا فیصده دی .

د پآل لمیا تهاکس مضمون د سنډی میگزین ۲۰۰۷ د اپریل ۲۹ .

په غرب کې د مسلمانانو د ډیروالی یوه نتیجه چې ډیر اثر لری هغه دا ده چې د عیسویانو د ثقافت پر ځایی د مسلمانانو ثقافت ډیر په خوریدو دی.

په اروپآ او امریکا کې ورځ په ورځ نوی جوماتونهجوړیږی او هلته د هر نوی جوړ شوی مینار له امله د اسلام اثر نور هم ښه په خوریدو دی ، هلته نن ورخی حجاب کړی ښځي او د ږیرو لرونکې سړی په هر ځایی کې لیدل کیږی ، نن ورځ د مسلمانانو د زیاتوالی له امله هلته د د کانونو نومونه په عربی هم لیکلی شته .

هلته په پارلمان او ولایتی شورگانو کې د مسلمانانو شتون دا ښئی چې مسلمانان د تیر وخت په پرتله اوس ډیر دی، د امریکا د پارلمان هغه واقعه خو په نړیواله سطحه مشهوره شوه چې د امریکا د مشرانو جرگي یو مسلمان غړی د بائیبل پر ځای په قران کریم قسم وخوړه او هماسی د شمالی افریقا هغه مسلمانه ښځه چې په فرانسه کېد اول ځل لپاره وزیره مقرره شوه نو له دی امله ځومره چې هلته د مسلمانانو نفوس زیاتیږی هومره به هغوی ته پّ حکومت کې د کار کولو موقع پّ لاس ورځي .

غربیان چې نن کومی چغی وهی او ډاریږی چې په را روانو وختونو کې به په اروپا کې عیسویان اقلیت شی او د دوی په مقابل کې به مسلمانان اکثریت وی نو د دوی دغه خبره خکه د مبالغی نه خالی ده چې هلته د اسلام خپریدل او د مسلمانانو زیاتوالی دا ښئی که حالت همداسې روان وی نو کیدای شی دا کار وشی.

په غرب کې د مسلمانانو د اکثریت مخه یو شی نیولی شی او هغه دا چې دوی د اولادونو زیږول زیات کړی، خو غربیان په عیاشی او فحاشی کې دمره ډوب شوی چې د هغی نه راوتل اوس ورته ډیر ستونزمن ښکاری .

## دویمه (۲) ضمیمه :

د امریکا خود سره او فرعونی څواک:

دا به بی ځایه نه وی چې مونږ د امریکا د خود سری په باره کې د امریکا د یوه مشهور لیکوال جان ټرمین د کتاب نه څو حوالی ولولو ، هغه لیکلی :

کله چې د بوش حکومت په عراق خمله کوله نو د بوش کابینی دغه حملی ته په سلهاؤ بهانی جوړی کړی مگر ریښتونی او صحیح خبره دا ده چې د امریکا دغه جنگ او په عراق حمله صرف او صرف د عراق پر تیلو د قبضی او هلته د نورو عربی هیوادونو د حپل تاثیر او واک لاندی راوستل ول .

همداسې امریکا افغانستان ته هم بهانه جوړه کړي وه او هدف ئي یواځي او یواځي په افغانستان کې موجود د نړی قیمتی کانونه او داسې ډیر نور څه دی چې هغه په نورو اسیایی ملکونو کې دمره په کثرت سره شتون نلری، جان ټرمین په عراق د حملی د امریکا د وزیر دفاع هغه خبره نقلوی چې د عراق په باره کې ئي کړی وه ، جان ټرمین وایی د امریکا د دفاع وزیر د عراق پّ باره کې ویلی ول :

دا هیواد ( عراق) د تیلو په سترو ذخیرو باندی لامبو وهی .

100 ways America is screwing the world , john tirrman 22 page

جان ټرمین په خپل کتاب کې لکلی:

رښتونی خبره داده چې په دغه ځایی کې د تیلو تر لاسه کول د امریکا د بیرونی پالیسی له مهمو ټکو څخه دی ، خو څوک هم په دی یقینی نه دی او نه هم څوک دا ویلی شی چې د امریکا په دغه جنګ کې به د دغه بیچاره ملکونو څومره وګړی د مرګ خوی ته وغور ځیږی او دا هم نه ده معلومه چې څومره خلک به د امریکا څخه ورځ په ورځ نفرت کوی .

د جان ټرمین کتاب ۲۳ مخ .

جان ټرمین لیکلی :

که څوک د عراق د پراخو پترولو د تر لاسه کولو په باره کې د امریکا د سیاست او دغه جنګ څخه انکار کوی نو په حقیقت کې هغه د حقیقت نه سترګی پټوی ځکه کویت ته د عراق د تیلو وړل د هیچا څخه هم نه دی پټ . د جان ټرمین د کتاب ۴۲ مخ .

د جان ټرمین په کتاب د امریکا یو بل لیکوال هو وارډ زین تفریظ لیکلی هغه د امریکا د دغه ناری په باره کې چې هغوی وایی : خدای زمونږ سره دی ، باندی داسې تبصره کړی ده :

د امریکا په تاریخ کې دا ناره چې : خدای زمونږ سره دی، د دوی دا خبره هر وخت زوروره پاتی شو او تر ننه چې د امریکا حکومت کوم ملکونه اشغال کړی او پّ دوی یی حملی کړی هغه ټول د هغوی د خدای په تائید کړی ، پته دی نه وی چې بوش د عراق او افغانستان په جنګ کې داسې ویلی وه چې :

هغه د خدای په هدایت عمل کوی ، که څوک ئی نه منی نو ویډیو یی په یو ټیوب کې شته دی .

همدی لیکوال د کتاب په تقریظ کې لیکلی :

د امریکا جمهور رئیس ولئیم میکېنلی ویلی ول: د فلپینیانو عیسائی کول د امریکا حکومت ذمه واری ده، هغه ویلی: د نړی د هر فوځ څخه د امریکا فوځ ډیر بدل او بهتره دی ځکه د امریکا فوځ د ازادی، انصاف، سوکالی او د

خوشحالی لپاره تر ټولو ډېر کار کوی . د جان ټرمین د کتاب اول مخونه .

هارورد زین د امریکا د یوه بل امریکائي رئیس جمهور وډ وولس چې هغه د فوځیانو په یوه غونډه کې کډون کړی وه داسې ویلی ول چې : د امریکا بنیادی کار دا دی چې د انسانیت څخه دفاع وکړی او هر وخت چې د امریکا کوم فوځي د ستورو څخه ډکه دغه بیرغ په هوا کې پورته کوی نو تاسو هغه وخت دنیا ته دا پیغام ورکوی کوم چې د نړی وکړو هیر کړی او هغه پیام د نیولو او فتح کولو څخه نه دی مراد بلکه د انسانیت د خدمت بیغام دی .

هارورډ بیا لیکلی :

د نړی د مشهورو رسالو ټائم، لائف او فورچون پخوانی مالک هینری لیوس هم یو وخت ویلی ول:

په نړی د خپل اثر او واک ساتل زمونږ حق دی او د دغه حق لپاره چې د امریکا حکومت هر رقم د طریقی استعمالولو ته اړینه شو هغه استعمالولی شی او را روانه پیړ زمونږ د حکومت پیړی ده .

د جان ټرمین کتاب اولني مخونه .

د یادونی وړ ده چې امریکا د امن په خاطر په ټوله نړی کې د اوه سوه څخه زیاتی فوځي اډی لری ، حال دا چې د امریکا د دغه فوځي اډو له امله نړیوال امن خو څه چې د امریکا دغه اډي او نړیوال او نړیوال سیاست ټوله نړی د دریم نړیوال جنګ په خوله کې درولی ده .

صومالیه، یمن، جنوبی افریقا، قطر، پاکستان، عراق، افغانستان، جنوبی کوریا هند، جاپان، فلبین او د نړی نور ډېر ملکونه چې هلته دامریکا فوځي اډي او بحری بیړی شتون لری هلته که څه هم عام وګړی د امریکا تر ټولو ډېر مخاف دی خو د دغه هیوادونو مشران او سیاست پوهان د امریکا هغه غلامان دی چې د همدوی په وسیله ئي نن په دنیا ځان منلی دی .

**اخځونه :**


١ : بدمعاش ملکونه

لیکوال: نوم چومسکې. ژباړه: موسی خان جلال یو پبلیشر ، لاهور ٢٠٠٣

٢ : په عراق کې د امریکا جنګی جرمونه

لیکوال: رمزی کلارک، ژباړه: محمد امین بټ جمهور پبلیکشر ، لاهور ٢٠٠٤ .

٣ : د تالمود نه پرده پورته شوه .

لیکوال: ائي بي پرینی تس، ژباړه: رضی الدین سید نیشنل اکېډمی اف اسلامک ایجوکېشن کراچې ٢٠٠٥.

۴ : د اسرائیلو فریبونه

لیکوال: سینیټر پال فنډلی، ژباړه: محمد شعید رومی صفه پبلشرز لاهور ٢٠٠١

۵ : د یهودو شکنجه

لیکوال: سینیتر پال فنډلی، ژباړه: محمد سعید رومي صفه پبلشرز لاهور ٢٠٠١

٦ : د امریکا نه وروسته نړی

لیکوال : فرید ذکریا نیوز ویک صبیح پبلشرز لاهور ٢٠٠١

٧ : د امت د زوال اسباب

لیکوال : امیر شکیب ارسلان قدیمی کتب خانه کراچي ٢٠٠٠

٨ بناؤ اور بگاړ

لیکوال : علامه ابو الاعلی مودودی ادراه معارف الاسلام

٩ : د مسلمانانو د عروج او زوال اسباب

لیکوال : مولانا سید صباح عبدالرحمن هند مجلس نشریات اسلام ١٩٩۴

١٠ مقدمة ابن خلدون

لیکوال : علامة ابن خلدون نفیس اکېډمی کراچې ١٩٨٦

١١ : د ورلډ آرډر حقیقت

لیکوال : نوم چومسکې، ژباړه : احسن محمود مخدوم حمهوری پبلشرز لاهور

. ۲۰۰۴

12 : Decline and fall of the roman empire : (Edward gibbon) the modern library new york 2005

13 : Anti Arabracism in the USA : ( Steven stalaita) Pluto press London 2006

14 : Our endangered values : ( jimmy carter) translated ahsan butt darul sho`or >

15 : Armageddon , oil and the middle east : ( john f wallwoord) Zondervan publishing house 1990 usa .

16 : dajjal :( ahmad Thomson) London 1995 taha publishers ltd

17 ; Rise and fall of the great powers : ( Paul Kennedy) vintage book new york 1989 .

18 : 100 ways America screwing the world : ( john tirrman ) new york 2006 .

19 : daily down .

20 : news week London.

21 : financial times London

22 :Washington times

25 : اسلامی ریسرچ اکېډمی مختلف تاریخونه

26 :www:rense.com

27 : www: theglobalist.com

28 :www:prisonplanet.tv/io/09124-hiltton.html

29 :www:michaelmoore.com/words/mikes.letter/11